دَ دهٔ او دَ دهٔ دَ عیال په منځ کښې به جدائی راشي. که اوګوري چه دَ دهٔ ډکوتے دوه غمي دي. یا ورته چاورکړې او دواړه غمي یو شان وي تعبیرئے هغه خوب لیدونکے دَ غلام څوي دے. اوکه اوګوري چه یَو غمے ورته پریوتے دی. تعبیر ئے دوه ژُنه به دَ یوے ګناه نه توبه اوباسي. او که اوګوري چه خپل نوم ئے ولیکلو او په ګوته ئے مهرکړو. تعبیرئے څهٔ شے به ورته رسیږي.
اوکه اوګوري چه په پرانستي خطئے خپل مهرلګولے دے تعبیرئے څهٔ ښکاره شے به ورته ملاویږي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي. دَ سپینو زرو ګوته په خوب کښې لیدل تعبیر ئے په څلورو وجووي (۱) مملکت (۲) ښځه (۳) څوي (۴) مال او دَ سرو زرو ګوته ښهٔ ده اوکه ښځه اوګوري چه دَ دے ګوته دَ غمي سره ضائع شوے ده تعبیرئے دَ دے عزت او مرتبه به ختمیږي یا به ئے بچي مري یا به ئے مال هلاک کیږي. اوکه حاکم وي دَ خپل منصب نه به لرے شي. اوکه ښځه داسے خوب اوګوري، تعبیرئے دَ دے به خاوند یا څوي مړشي.

## زړک (تنذرو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه زړک په خوب کښې لیدل تعبیرئے بے وفا سړے او دهوکه ورکوونکے ښځه ده. او څنے معبرین وائي چه زړک حرام مال دے چه په چل ئے لاس ته راوړے وي. اوکه اوګوري چه دَ زړک سره جنګ کوي. تعبیرئے دَ بے وفا سړي به جنګ کښې پریوځي که اوګوري چه ښځه زړکه ورته حاصله شوے ده، تعبیرئے ښائسته ښځه به کوي دَ زړک دَ سپینوالي په اندازه او یا به ډکور دَ پاره وینزه اخلي.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه زړک په کور کښې لري او هغه مړشو تعبیرئے دَ هغهٔ ښځه به هلاکه شي (مړه شي) او به ورته دَ ښځو په وجه مصیبت پیښیږي.
اوکه اوګوري چه زړک ئے دَ کور نه والوتلو. تعبیرئے ښځے ته به طلاق ورکوي
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي دَ زړک لیدل په خوب کښې په څلورو وجووي (۱) ښځه (۲) حرام مال (۳) زندګي (۴) دَ زړهٔ مرادونه تلاش کوي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي. زړک په خوب کښې لیدل پرهیزګاره

بناشته او دولتمندہ ښځه ده که اوګوری چه زړک ئے نیولے او یا ئے مونډلے دے تعبیر ئے، دَ هغه صفت مطابق ښځه به کوی لکه څنګه چه مِ پورته بیان کړو که اوګوری چه زرک دَده په غیر کښے پریوتے دے او اُرده شوے دے. تعبیر ئے دَده به دَ عیال سره بحث کیږی او فریب به ورکوی.

## زخم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه په وجود ئے زخم دے او دَ وینے اثر نه ښکاری تعبیر ئے په زخم لږدونکی به کامیابی بیا مومی او خیر او نفع به بیا مومی. که اوګوری چه دَ زخم نه ئے وینه روانه ده او اندامونه ئے په وینو ګنده شوی وو. تعبیر ئے حرام به بیا مومی. او که اوګوری چه اندامونه ئے نه دی ګنده شوی. تعبیر ئے زخم لږدونکے به دَده بانده په څه ګناه او یا په څه تور تهمتی کړی (توربه وربانده ولګوی)

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که خوب کښے اوګوری چه زخمی شوے دے او په وینو ګنده دے تعبیر ئے دَده مال کښے به نقصان کیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ زخم لیدل په خوب کښے په دریو وجوه وی (۱) کامیابی موندل (۲) خیر او نفع (۳) دَمال نقصان.

## زغره او دَ اوسپنے کُرته (جوشن)

حضرت محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے زغره اغوستل دَ هغے دَ سپیڅلی او پاکیزګی په اندازه ملا تړ دے. که خوب کښے اوګوری چه زغره لری تعبیر ئے، دے او دَده اهل به دَ دښمنانو نه امن کښے شی. که اوګوری چه زغره ئے اغوستے ده. تعبیر ئے دَده وجود به دَ دښمنانو دَ شر نه په امن کښے وی چه په ده به کامیابی نه مومی. که اوګوری چه دَ زغرے سره نوره اسلحه هم ورسره ده تعبیر ئے دَ منافق دَ چل او مکر او دَ عام شر نه به په امن کښے شی. څنے معبرین وائی چه په خوب کښے زغره لیدونکے دَ دین زیاتی ده. که څوک په خوب کښے زغره اوګوری تعبیر ئے، پښه به دَ الله تعالیٰ په حفاظت کښے وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، زغره په خوب کښے لیدل په شپږو وجوده (۱) مشری (۲) پناه (۳) قوت (۴) مال (۵) ژوند (۶) ژوند او دَ دین زیاتوالے. زغره خوب کښے لیدل غمخور مذکرے دے.

## زغره (دُرّاعه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که خوب کښے اوګوری چه شین رنګه نوے او فراخه زغره ئے اغوستے ده. تعبیر

یې، دَ هغې دَ غټوالي په اندازه به مرتبه شرف او قوت په دین کښې وي. که اوګوري چه خیر نه او تنکه زغره یې اغوستې ده تعبیر به یې دَ دې خلاف وي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي. که اوګوري چه سپینه زغره یې اغوستې ده تعبیر یې مال، نعمت، بزرګي به بیا مومي. او که اوګوري چه سره زغره یې اغوستې ده. تعبیر یې مصیبت دے او که توره وي تعبیر یې غم او فکر دے مګر توره زغره دَ قاضي (جج) او خطیب (امام مسجد جامع) ته نقصان نهٔ لري. که اوګوري په خوب کښې چه زغره یې دَ وجود نه لرې کړې ده. تعبیر یې دَ غمه نه بهٔ جدا شي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، دَ زغرې لیدل په خوب کښې په اووهٔ وجوه وي (۱) خوشحالي (۲) قوت (۳) محبت (۴) شرف او مرتبه (۵) مرتبه او ولایت (۶) دَ کارونو انتظام (۷) بخښه

## زخمي کول۔ (خسته کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که چرے اوګوري چه دَ دهٔ بدن چا زخمي کړے دے او وینه ورنه راوتلې ده، تعبیر یې زخمي کوونکے به دهٔ ته رښتونې خبره کوي داسې چه دے به جواب نشي ورکولے۔ او که اوګوري چه دَ هغهٔ دَ زخم نه وینه نهٔ ده راوتلې تعبیر یې دهٔ ته به داسې خبره کوي چه دروغجنه دي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي، که اوګوري چه په توره یې وهلے او دوه ټوټې کړې دَ تعبیر یې دَ دهٔ په وړاندې به داسې خبره کوي چه خلک به ورته پېغور ورکوي که یو سړے په خوب کښې په وجود کښې ډېر زیات زخمونه اوګوري تعبیر یې دَ بادشاه نه به نفع او مومي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي ډېر زخمونه په وجود باندې دَ مال نقصان دے۔ حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي په خوب کښې زخمي کیدل په درے وجوه وي (۱) مال (۲) نفع (۳) ناخوښه خبره.

## زړهٔ۔ (دِل)

دَ وجود دَ ښار بادشاه زړهٔ دے او وجود دَ دهٔ په حکم ولاړ دے او په پټه او ښکاره کښې زړهٔ دَ عقل خزانه ده.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، زړهٔ په خوب کښې دَ رسیدلي مال جمع کول دي. که اوګوري چه زړهٔ یې دَ وجود نه بهر دے۔ تعبیر یې په صلاح او په نیکۍ دَ الله تعالیٰ فرمان دے۔ (حَتّٰىٓ اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ) ترجمه: تر دے پورے چه دَ هغوی زړونه ویریږي، نو هغوی وائي چه

ستاربخښ وفرمائیل؟ هغوی وائي چه حق ئے او فرمائیل)۔
که اوګوری چه زړه ئے تنګ شوے دے تعبیر ئے، کاروته به وربانده سخت شي
که اوګوری چه زړه ئے خوشحاله دے تعبیر ئے، کاروته به وربانده راخلاص شي
او که زړه بند او ویني تعبیر ئے، د ګناه نه به توبه اوباسي۔ د الله تعالیٰ کلام دے
(اَفَلَا یَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ اَمْ عَلٰی قُلُوْبٍ اَقْفَالُهَا) محمد، هغوئی ولے په قرآن کریم کښے سوچ نهٔ کوی یا د دوی په زړونو تالے لګیدلی دی۔
اوکه زړهٔ په لاس کښے اوګوری تعبیر ئے، بیمار به شي۔ او که اوګوری چه زړهٔ ئے په دواړو لاسونو کښے نیولے دے تعبیر ئے، کاروته به ئے پوره شي۔
حضرت کرمانی فرمائیلی دی که اوګوری چه زړهٔ ئے زړه کوی تعبیر ئے مال به ئے زیات شي۔ او که اوګوری چه د زړهٔ سترګے ئے پرانستے دی تعبیر ئے د دواړو جهانو کارونو به راغب او حریص وی۔ که اوګوری چه د زړهٔ نه ئے وینه راوځی۔ تعبیر ئے، د نهٔ کوونکی کارنه به توبه اوباسی او الله تعالیٰ ته به رجوع کوی۔ او که اوګوری چه د زړهٔ نه ئے صفرا راوتلے ده تعبیر ئے بیمار به شي
که اوګوری چه د دهٔ زړهٔ زخمی شوے دے تعبیر ئے، بے غمه به شي۔ که اوګوری چه د زړهٔ نه ئے ملغلره وتلے ده او هغه ملغلره ئے د خولے نه غورزولے ده تعبیر ئے کافر به شي۔ او که اوګوری چه ملغلره ئے د زړګے او چته کړے او خوړلے ئے ده۔ تعبیر ئے، بیا به مسلمان شي۔ او که اوګوری چه ملغلره ئے د زړهٔ نه اووتله او د هغے نه جواهر چاپیره وو او هغه جواهر په زمکه پریوتهٔ او ملغلره ئے او خوړله تعبیر ئے، پنځهٔ مونځونه به پریږدی۔
حضرت مغربی فرمائیلی دی، که اوګوری چه زړهٔ ئے تو ته توته شوے دے تعبیر ئے، په ناممکنه هوسونو کښے به مشغول شي۔ او که اوګوری چه زړهٔ کښے ئے رنړا شوے ده۔ تعبیر ئے د دین په صلاح ده۔ که اوګوری چه په زړه ئے تیاره ده۔ تعبیر ئے، د دے خلاف دے۔
حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی، د زړهٔ لیدل په خوب کښے په نهو څیزونو دی (۱) مال (۲) ریاست (۳) څوی (۴) زړورتیا (۵) څوانمردی (۶) حرص (۷) قوت (۸) کومک (۹) شهوت (۱۰) مال پټ ساتل۔

## زنګون (زانو)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی په خوب کښے زنګون لیدل تعبیر ئے زندګی ده۔ که اوګوری چه

زنګون ئې قوی او مضبوط دے، تعبیر ئې کار کښې به قوی او زندګی به ئې فراخ
وی- او که اوګوری چه به زنګونو په لار ځی تعبیر ئې په کار کښې به ضعیف وی
او زندګی به وربانده تنګه وی- که اوګوری چه دَ زنګون سترګه ئې ماته یا
ضعیفه ده- تعبیر ئې کار به ئې تباه شی- که اوګوری چه دَ زنګون سترګه ئې
پړسوتې ده تعبیر ئې چه څهٔ سرمایه لری دَ لاسه به ئې لاړه شی-

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی په خوب کښې زنګون دَ خلکو کسب او زندګی دَ
که اوګوری چه دَ زنګون سترګه ئې سخته او قوی شوے، تعبیر ئې دَ دهٔ کسب او کار
به زیات وی- که اوګوری چه دَ زنګون سترګه ئې کمزورے ده، تعبیر ئې دَ دهٔ
ژوند او کسب به کمزورے شی بالکل به قطع شی-

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې زنګون دَ غم او دَ مشقت ځائے دے.
او چه زنګون ئې کښې کمے زیات ئې اوګوری تعبیر ئې هغه دے کوم چه مونږ دَ هغې
بیان مخکښې کړے دے.

## زبور شریف (دَ حضرت داؤدؑ کتاب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک خوب کښې اوګوری
چه زبور شریف وائی، تعبیر ئې دَ الله تعالیٰ طرف ته به رجوع کوی او نیک کار به
کوی- او که اوګوری چه زبور شریف په ظاهر لولی- تعبیر ئې زهد، تقویٰ او نیکی
به په ریا کاری او نفاق سره کوی-

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه زبور شریف لیکی تعبیر ئې
داسے کار کښې به مشغول شی چه دَ هغې نه به نفع او مومی. که اوګوری چه زبور شریف
لو لی، تعبیر ئې دَ دهٔ کاروبار به ښهٔ وی.

## زیړ رنګ (زردبها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی زیړ رنګ
په خوب کښې لیدل تعبیر ئې بیماری ده، که
میوه وی او که جامه.

## زعفران

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک خوب کښې
اوګوری چه زعفران لری تعبیر ئې خلک به دَ دهٔ صفت
کوی- که اوګوری چه په جامو او وجود زعفران دی تعبیر ئې بیمار به شی-

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری په خوب کښې چه چا ثابت زعفران
ورکړی دی تعبیر ئې، مال اره بښځه به کوی- که اوګوری چه دَ زعفرانو ډهیر ئې

لری او دَهغه نه خوری تعبیرئے مال او نعمت به دهٔ ته حاصلیږی۔

**زکوٰة** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَمال زکوٰة ئے ورکړے دے، تعبیرئے مال به ئے زیاتیږی۔ که اوګوری چه سرسایه ئے ورکړے ده. تعبیرئے، موَنځ، روژه، او تسبیحات به زیات کوی او خلاصے به بیا مومی او دَ قرض نه به خلاص شی۔ او که بیمار وی نو صحت به بیا مومی او که دښمن ئے وی نو ورباندے کامیابی به بیامومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ مال زکوٰة ئے ورکړے دے. تعبیرئے دَ دهٔ مال به دَ دهٔ په قبضه کښے راځی او بلا به ورنه لرے شی. دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث شریف دے (حَصِّنُوْا اَمْوَالَکُمْ بِالزَّکٰوةِ) ترجمه: خپل مال په زکوٰة سره محفوظ کړئ۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَمال زکوٰة ورکوی تعبیرئے دَمال زیاتوالے دے۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَمَآ اٰتَیْتُمْ مِّنْ زَکٰوةٍ تُرِیْدُوْنَ وَجْهَ اللهِ فَاُولٰٓئِکَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ) ترجمه: او کوم زکوٰة چه تاسے دَ الله تعالیٰ دَ مخ ورکوئ، نو داهغه کسان دی چه خپل مال دوچند کوی له جهته دنیکونه۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ صدقے او زکوٰة ورکول په اتهٔ وجو وی (۱) دَ خوشحالی زیرے (۲) خیراو برکت (۳) دَ سخت کار حل کیدل (۴) دَ حاجت پوره کیدل (۵) رنړا (۶) دَ غم نه خلاصیدل (۷) زیاتے (۸) په دښمن کامیابی موندل۔

**زنګ۔ (زنګار)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ زنګ لیدل په خوب کښے دَحرام مال لیدل دی که اوګوری چه دَچا نه ئے زنګ اخستے دے، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به حرام مال حاصل کړی۔ که اوګوری چه زنګ ئے په اُور ایښے دے او اُور په بنهٔ شان تیز شوے دے۔ تعبیرئے دَ بادشاه سره به معامله کوی، او دَ هغے نه به فائده بیا مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے زنګ لیدل تعبیرئے مال او مراد دے، که اوګوری چه جامه یا کوم اندام ئے زنګ شوے دے. تعبیر ئے دَ بادشاه نه به ورته ضرر رسیږی۔ او که اوګوری چه زنګ ئے خوړلے دے تعبیرئے حرام مال به خوری او اخیر کښے به دهٔ ته دَ بادشاه نه

غم او فکر رسیږی۔

## زلزله

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه زمکه حرکت کوی، تعبیر ئے دَ هغه ملک خلکو ته به دَ بادشاه نه تکلیف او ملامتیا ورسیږی دَ زمکے دَ حرکت په اندازه او معبرین وائی اَخه آفت به خلکو ته رسیږی او په هغه ملک به بیماری پریوځی او که اوګوری چه زمکه اوګرځیدله او لاندے باندے شوه تعبیر ئے په هغه ملک کښے به بلا او فتنے پریوځی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه زمکه په قرار اُوخوزیده او نیمــــه لاندے لاړه تعبیر ئے په هغه ملک کښے به داسے بادشاه راشی چه هغه خلکو ته به عذاب ورکوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے زلزله لیدل او دَ زمکے غرقیدل، تعبیر ئے دَ بادشاه دَ طرف نه محنت او بلاء عظیم لری۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْاَرْضَ)[1] او ما هغه او دَ هغه کور په زمکه کښے غرق کړو۔ په هرحال زلزله په خوب کښے لیدل په عذاب او ملامتیا تعبیر لری دَ هغه ملک په خلکو۔

## زمکه (زمین)

حضرت دانیالؒ فرمائی، زمکه په خوب کښے لیدل ښځه ده که اوګوری چه دَه سره پاکه، فراخه، صفا زمکه ده تعبیر ئے، دَ دَه ښځه به سترمنده او صلاح کاره وی او په خپلوانو کښے به هغے نه دَ زمکے لویوالی او دَ فراخوالی مطابق عزت او مرتبه حاصلیږی۔ که اوګوری چه په هغه زمکه کښے شینکی او نامعلوم بوټی وی چه دَ دَه ملکیت دے۔ تعبیر ئے هغه سړے به دیندار او مسلمان وی او شینکی په خوب کښے اسلام دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه په زمکه شینکی او بوټی دی او ځائے معلوم دے تعبیر ئے دَه ته به بهتری او دیانت وی او که اوګوری چه زمکه ئے جوړه کړے ده او ابادی ورباندے جوړه کړی تعبیر ئے دَه ته به په دین او دُنیا کښے فضیلت وی، او اخر به دَ آخرت دَ نجات لاره بیاموی که اوګوری چه دَ دَه دَ لښتی په منځ کښے زمکه ده دَ بیابان په شان او هغه زمکه ئے نه ده پیژندلے تعبیر ئے لرے سفر به کوی۔ که اوګوری چه زمکه کری او خوری ئے، دَ هغے خوړلے خاورے په اندازه به مال بیاموی۔ او که اوګوری چه

(۱) قصص ۸۱

په زمکه کښې ښخ شوې دې چه هلته نه کښ کړه او نه کوهې دوا وهلته غائب شو تعبیر ئې داد ې چه مړ کیږي به. که اوګوري چه زمکه ډ کوهي یا تاخانې په شان کښي، تعبیر ئې په غم او فکر کښې به پریوځي یا به ډ دې نه وړاندې ډ دهٔ مال ضائع شي. که اوګوري چه په فراخه زمکه کښې دې او زمکه تنګه شوه او دې پکښې لاړو، تعبیر ئې چه هغه ځائې کښې به نیک نامعلوم کار کښې پریوځي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي، که اوګوري چه زمکې ورسره خبرې کړې او ډ غیر او ډ صلاح زیرې ئې ورکړې، تعبیر ئې په دُنیا کښې به ډیره نیکي کوي او ډ مرګ نه روسته به ئې خلک په نیکۍ یادوي، که اوګوري چه دهٔ ته زمکه لویه اوفراخه او غټه شوې ده، تعبیر ئې ډ عمر په اوږدوالي او ډ زندګۍ په فراخ والي دې. او که اوګوري چه ډ زمکې پیښ ائش کوي تعبیر ئې په سفر به ځي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه زمکه کړي تعبیر ئې چرته لوې کار کښې به مشغول شي او ډ ښځې ډ طرف نه به نفع بیا مومي. که اوګوري چه خپله زمکه اباد وي تعبیر ئې کار به ئې نیک او اباد وي او که زمکه خرابه اوګوري تعبیر ئې ډ دې خلاف دې او ډ چا سره به جګړه کښې پیریوځي. او که خپل ځان په زمکه کښې کړلې اوګوري تعبیر ئې ډ چا سره به ئې شراکت وي اویا به ښځه کوي. او که اوګوري چه او به راغلې او زمکه ئې غرقه کړه او فصل ئې تباه کړې تعبیر ئې ډ بادشاه نه به ملامتیا مومي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، ډ زمکې لیدل په خوب کښې په څلورو وجو وي (۱) ښځه (۲) دنیا (۳) مال (۴) ولایت.

**زنار** هغه تار چه هندوان او مجوسیان ئې په ملا تړي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که اوګوري چه ډ زنار تار ئې لاس کښې دې تعبیر ئې په دین کښې به ضعیفه وي. که اوګوري چه زنار ئې په ملا تړلې دې. که خوب لیدونکې پرهیزګاره نه وي تعبیر ئې کافر کیږي به. او که خوب لیدونکې پرهیزګاره وي تعبیر ئې ډ دښمن نه به انصاف مومي. که اوګوري چه زنار ئې پرې کړو او بهر ئې اوغورزولو، تعبیر ئې ډ بدکار نه به توبه وکړي او الله تعالیٰ طرف ته به رجوع وکړي او ډ اصلاح لاره به غوره کړي.

## زنځیر (زنجیر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې زنځیر معصیت او ګناه ده۔ که اوګوری چه زنځیر مات شوے او غوړن ولے ئے دے۔ تعبیرئے د ګناه نه به توبه کوی او د الله تعالیٰ طرف ته به رجوع کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه زنځیرئے په خپټ کښې دے تعبیرئے د خلکو په مال کښې لاس وهنه کوی او د حرامو به پخ کیږی۔ او که اوګوری چه زنځیر لیدل نافرمانه او ګنهګار سړے دے۔

## زنه (زنخ)

زنه په خوب کښې لیدل د کور مشر او ډیر عقلمند دے که اوګوری چه د ده زنه لویه شوے ده تعبیرئے د کور په خلکو به ذلیل او خوار دی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښې څوک د ده په زنه باندے زنه وهی، تعبیرئے د خاندان مشر به د ده سره خبرے کوی او د ده نه به خفه کیږی۔ او که اوګوری چه د ده د زنے نه وینه وتلے ده۔ تعبیرئے د وینے په اندازه به د خاندان د مشرانو نه ورته نقصان ملاویږی او ځنے معبران وائی چه د ده په کار او کسب کښې به نقصان پریوځی۔

## زهر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې زهر خوړل حرام مال او په ناحقه او په باطله وینه ده۔ که اوګوری چه د زهر خوړلو نه ئے بدن پړسیدلے دے تعبیرئے حرام مال به حاصل کړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه د ده بدن په زهرو ډک دے تعبیرئے په کوم کار کښې چه وی سخت حریص به پکښې وی او ځنے معبرا وائی چه خبره به کوی چه څنګښې به ئے۔ که اوګوری چه د ده بدن ته د زهرو نه تکلیف رسیدلے یا پړسیدلے دے، تعبیرئے د ده ته به د پړسوب په اندازه غم او تکلیف رسیږی۔ او که اوګوری چه زهرئے خوړلی دی تعبیرئے په چا به غصه کیږی۔

## زیره

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه په خوب کښې ډیره زیره او وینی د دین او د دنیا د فائدے او ګټے تعبیر لری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی که په خوب کښې لږه زیره او وینی نو د لږے ګټے تعبیر لری۔

## زین

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که زین اوکوری او دٔغاړوی په شانهٔ وی، نو تعبیر ئے ښځه ده، او که دٔغاړوی په شا وی نو تعبیر ئے، دٔ هغهٔ دٔ ښځې او بل حکم په سور باندے دے۔ که اوګوری چه زین ئے اخستے دے او، یا ورته ورکړے دے یا به ویټزه داخلی او یا به ښځه کوی. او ډیر به مال ارشی او دا هم کیدے شی چه دٔ چا میراث به بیا مومی که اوګوری چه زین ئے مات شوے دے تعبیر ئے ښځه به ئے مړه شی او یا به بیماره شی. که اوګوری چه دٔ دهٔ زین په سرو او سپینو زرو ښائسته دے تعبیر ئے دٔ دهٔ ښځه به معذوره او کبرجنه وی. که اوګوری چه دٔ دهٔ زین نور دے او خهٔ ښائست پکښے نشته. تعبیر ئے ښځه به ئے پرهیزګاره او دیندار ه وی زین جوړوونکی دلاله ښځه ده چه دٔ هغے کار دلالی وی او الله تعالیٰ په حقیقت پوهیږی.

## زیاتی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که دٔ خیر او صلاح زیاتی وی نو ښه دی او چه کوم شی کښے شر او فساد وی نو دٔ هغے زیاتے بد دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، زیاتے په بدن کښے لید ل چه څهٔ نقصان ئے نشته دے ښهٔ دے چه څومره زیاتے او وینی هغومره به مال او نعمت زیات وی او که دٔ زیاتی نه دٔ دهٔ بدن ته څهٔ نقصان ورسیږی تعبیر ئے غم او بیماری ده۔

## زمیندار (کشت ورز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے زمینداری په الله تعالیٰ باندے توکل دے او حلاله روزی ده او طلب دٔ نیکی او نیک او فاضل صوت دے۔ که اوګوری چه تخم کرلو دٔ پاره ئے زمکه اړولے ده۔ تعبیر ئے نیکی او صدقه سره دے۔ که اوګوری چه زمینداری کوی به ورکوی. او دٔ دے فن استادانوؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه زمینداری کوی تعبیر ئے بیمار به شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه زمکه ئے اړولے ده او تخم ئے کرلے دے او هغه ئے بیا جمع کړے دے تعبیر ئے بزرګی، مرتبه او نعمت به او مومی که اوګوری چه تخم ئے کرلے دے او باران پرے شوے دے تعبیر ئے ډیر ښهٔ دے کوم چه مونږ بیان کړو۔ که اوګوری چه دٔ فصل نه څهٔ حاصل نهٔ شو

او دا هم نۀ ده معلومه چه باران څنګه وو تعبیر ئے، غم او فکر دے. که اوګوری چه غنم ئے کرلی دی، تعبیر ئے، دَ بادشاه نه به ورته خیر او نیکی ورسیږی.
او که اوګوری چه اوربشے ئے کرلی دی تعبیر ئے ډیر مال به بیا مومی.

حضرت دانیال فرمائیلی دی که اوګوری چه په خپله زمکه کښے تخم کرے دے تعبیر ئے بنځه به کوی او کار به ئے جوړ وی. او که سود اګر او وینی چه خپله زمکه ئے نا کرلے ده. تعبیر ئے نقصان به کوی او یا به دَ چا سره جګړه کوی او که اوګوری چه نامعلومه زمکه ئے کرلے او تخم ئے پکښے اچولے دے، تعبیر ئے، دَ جهاد کولو، صدقے ورکولو او دَ نیکی ورکولو راغب به وی.
او که خپله زمکه کرلے اوګوری تعبیر ئے نعمتونه به ورباندے فراخ وی.
که اوګوری چه خپله زمکه کښے غنم یا اوربشے او یا وونے کرلے اوګوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته عزت مرتبه حاصله شی.

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی، په خوب کښے زمینداری په پنځو وجو دی (۱) دَ حلالے روزی طلب (۲) خیر او نفع (۳) بیماری (۴) عزت او مرتبه (۵) زندګی.

## زانړے (یو مارغۀ دے) - (کلنګ)

زانړے په خوب کښے مسافر سړے دے. حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی. که اوګوری چه زانړے ئے نیولے ده او یا چا ورکړے ده. تعبیر ئے دَ مسافر سړی سره به ملاویږی او نیکی به ورسره کوی. که اوګوری چه دَهٔ سره دَ زانړے وزرد ے یا ورسره دَ هغے غوښه ده تعبیر ئے دَ مسافر سړی نه به راحت بیا مومی.

حضرت کرمانی فرمائی، که اوګوری چه زانړے څروی، تعبیر ئے دَ مسافرو او غریبانانو مشری به کوی او بادشاهی به ورباندے کوی. که اوګوری چه دَ زانړے خوی لری تعبیر ئے فقیر به شی.

## زړه جامه خرقه (ګلیم)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، په خوب کښے خرقه رئیس او سردار دے که خوب لیدونکے سردار وی، تعبیر ئے، عزت او بزرګی به ئے نوره هم زیاته شی او څنے معبرین وائی چه سړے به صالح او نیک وی او فقیرانو کښے به دیندار وی ـــــ حضرت کرمانی فرمائی، که اوګوری چه خرقه ئے اومونده، تعبیر

ئې دَ مالداره ښځې سره به نکاح کوی۔ او که دا خوب ښځه اوګوری تعبیر ئې
خاوند به کوی او دَ هغهٔ نه خیر او نفع به بیا مومی۔ که اوګوری چه په وړه
خرقه ناست دے۔ تعبیر ئې ښائسته پرهیزګاره او دَ خپل طبیعت موافق
ښځه به کوی۔ او که اوګوری چه شنه خرقه ده۔ تعبیر ئې دَ پرهیزګارې او جنګیالئ
ښځې سره به وادهٔ کوی، او که اوګوری چه سره خرقه ده۔ تعبیر ئې عیش پسندهٔ
ښځې سره به وادهٔ کوی، او که زیړه خرقه وَه تعبیر ئې بیماره ښځه به کوی
او که توره خرقه وَه، تعبیر ئې دَ پرهیزګارے او نیکے ښځې سره به وادهٔ کوی
او که دَ نبو رنګونو خرقه وه تعبیر ئې، په دے ښځه کښې به دا پوره صفتونه
دی۔ که اوګوری چه خرقه ئې اغوستے ده، تعبیر ئې دَ پرهیزګارهٔ سردار
پناه کښې به وی او دَ هغهٔ نه به نفع بیا مومی۔ او که اوګوری چه خرقه ئې دَ ځان
نه لرے اچولے ده او ضائع شوے ده۔ تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې دَ خرقے لیدل په
پنځهٔ وجودی (۱) رئیس سړے (۲) پرهیزګاره بزرګ (۳) مالداره ښځه (۴) ویټره
(۵) خیر او نفع۔

## زیړه کُنجکه (کهربا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، زیړه کُنجکه په
خوب کښې لیدل بیماری ده۔ که څوک په خوب کښې
اوګوری چه زیړه کُنجکه ورسره ده۔ تعبیر ئې بیمار به شی او زر به ښهٔ شی۔ ځنې
معبرین وائی چه دَ دهٔ بیماری به اُوږده وی۔

## دَ ځمکے حشرات (چینجی)۔ (هوام)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی
کوم چینجی چه په ځمکه ګرځی تعبیر ئې دَ دوی دَ قدر او قیمت او صلاحیت باندے
وی ځکه چه په دوی کښې څهٔ دَ ادنیٰ درجے وی دَ هغے تعبیر دَ علم تعبیر له مخه
کوم مضبوط دښمن باندے وی په نسبت دَ هغه چینجو کوم چه زهرناک وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې دَ ځمکے حشرات او یا چینجی
لیدل څهٔ ویره ده چه هغه دَ کنځل مار او حاسد سړی دَ طرف نه وی۔

## زولنې۔ (شکنجه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، زولنې لیدل په
خوب کښې تعبیر ئې ذلت او عاجزی ده۔ که اوګوری
چه دهٔ ته دَ زولنې نه درد رسیدلے دے بیائے هم دغه تعبیر دے۔ که اوګوری
چه دَ زولنې نه ورته تکلیف نهٔ دے رسیدلے تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔

که اوګوري چه بادشاه زولنه کړے دے، تعبیر ئے دَ بادشاه نه به غم وینی.

## زره جامه - (خرقه)

خرقه، زره جامه دَ دے اغوستل په خوب کښے غم او فکر دے - که اووینی چه زره جامه ئے دَ ځانه اُوویستله - تعبیر ئے غم او فکر به ورنه لرے شی. او په خوب کښے هرنوے شے لیدل ښه دی - مګر موزه چه دَ دے زره دَ نوے نه ښه دَه.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که څوک په خوب کښے دَ زړو جامو خرڅول وکړی تعبیر ئے بد دے. او که نوے جامه خپله خرڅوی تعبیر ئے ښه دے او زړے کپړے خرڅوونکے هغه سړے دے چه دَ ځانه غم او فکر لرے کوی.

## ذرے د هوا (صباء)

دَ ګرد هغه ذرے چه دَ نمر په شعلو کښں ښکاری

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه په خوب کښں ذرے لیدل باطله خبره او پریشانه کار ونه دی چه په هغے کښں خیراو برکت نهٔ وی لکه څنګه چه الله تعالیٰ په خپل کتاب قرآن مجید کښں فرمائی (فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا) ترجمه (او مونږ خورے ورے ذرے کړے).

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که چرے په هوا کښں سرے ذرے اووینی تعبیر ئے په دے ملک کښں به بیماری وی او که تورے ذرے وی تعبیر ئے مصیبت دے او که سپینے اووینی تعبیر ئے بے غمی ده.

## زیتون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے زیتون لیدل غم او فکر دے - که اووینی چه دهٔ سره زیتون دی یا ورته چاورکړی دی او دے ئے خوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به غم او فکر خوری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښے دَ زیتون لیدل تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به غم او فکر خوری.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه زیتون تراخهٔ نهٔ دی او دَ دوئ سره ئے خوری - تعبیر ئے دهٔ ته به دَ محنت سره نفع حاصلیږی.

## زرک (کبک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے زرک لیدل ښائسته ښځه او، یا ښائسته وینزه ده. که اووینی چه زرک ئے نیولے دے تعبیر ئے ښځه به کوی - که اُووینی چه زرک ئے دهٔ ته بخښلے دے تعبیر ئے ښائسته ښځه به کوی. که اوګوری چه په ښکار کښے ئے زرک نیولے دے تعبیر ئے ښهٔ وینزه به لاس ته راوړی. او که اووینی چه دَ زرک غوښه

ئے خوړلے دہ۔ تعبیرئے، تو دے جاے بہ ورتہ حاصلے شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کہ اوو ینی چہ دَ زہرک مرے ئے پریکړے دہ۔ تعبیر ئے دَ پیغلے وینزے پیغلتوب پہ ماتوی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، نر زہرک ځوی دے او ښځہ زہرکہ وینزہ ناموافقہ دہ۔ کہ اوو ینی پہ خوب کښے چہ دَدۂ دَ لاسہ زہرک الوتے دے۔ تعبیرئے ښځے تہ پہ طلاق کوی او یا بہ ئے وینزہ تښتی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، پہ خوب کښے دَ زہرک لیدل پہ څلورو وجوہ وی (۱) ځوی (۲) دوست (۳) قربانیدل (۴) دَ زړۂ مراد او مطلب۔

## زمئ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَدے لیدل پہ خوب کښے غم او فکر دے او خوړل ئے بیماری دہ۔

**نوٹ:** ۔ دا یو قسم تروہ گیا دہ چہ پہ زمکہ کښے زرغونیږی او خلک وربانذے جامے وینځی او دَ صابن پہ ځائے استعمالیږی او چہ اوسزیږی نو ورنہ اشکہا جوړشی۔

## زبیخل (بخوړوول)۔ (عصار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی کہ څوک خوب کښے اوگوری چہ څۂ بخوړوی تعبیرئے دا سے کار کښے بہ مشغول شی چہ دَدۂ پکښے صفت کیږی او نوم بہ ئے پہ نیکی، ښیګړے سرہ مشہور شی۔

## ژ۔ ژبہ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، کہ اوگوری چہ دَدۂ ژبہ پریکړے شوے دہ او چا سرہ دَ جھګړے نہ بغیر ناقصہ شوے دہ۔ او دَ دلیل پہ وخت دَدۂ ژبہ بندہ شوے دہ۔ دَ دے تعبیر دَ ھغۂ خلاف دے۔ او کہ اوگوری چہ دَدۂ ژبہ پہ اوږدوالی او پلنوالی زیاتہ شوے دہ تعبیر ئے، دَدہ ژبہ بہ دَ دلیل پہ وخت پہ مقابل بانذے جاری شی او کامیاب بہ شی۔ او کہ اوگوری چہ بغیر دَ جنگ نہ ئے ژبہ اوږدہ شوے دہ تعبیرئے خبرے بہ ئے ډیرے وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی کہ اوگوری چہ دَوہ ژبے ئے دی تعبیرئے، اللہ بہ دۂ تہ عقل او علم ورکړے او کہ اوگوری چہ دۂ خپلہ ژبہ قصداً پریکړے دہ پہ دے خاطر چہ څۂ خبرہ ونۂ کړی تعبیرئے دَ دروغو خبرو نہ بہ توبہ اوباسی۔ کہ اوگوری چہ دَدۂ ژبہ پہ خطاء خبرو جاری دہ، تعبیرئے دا سے خبرہ بہ کوی چہ اللہ تعالیٰ وربانذے نۂ راضی کیږی

که اوګوري چه چا دَده په خوله کښې ژبه ایښې ده، تعبیر ئې دا دے چه دهٔ ته به دَچا په خبره کښې قوت او دلیل وی او که اوګوري چه دَ چا ژبه زَروی تعبیر ئې دَ هغهٔ نه به علم او عقل حاصلوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوري چه دَ دهٔ ژبه کوچنئ شوے دهٔ تعبیر ئې دا دے چه دَ دین او دَ دُنیا فساد دے۔ او که اوګوري چه دَ چا فقیر ژبه ئې پریکړے ده۔ تعبیر ئې نقیر ته به څهٔ ورکوی، او که اوګوري چه دَ وینځے ژبه ئې پریکړے ده تعبیر ئې دا دے چه دا به بے پردے کوی او راز به ئې معلوموی او که اوګوري چه ژبه ئې تالو سره لګیدلے ده، تعبیر ئې قرض اره به شی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، که اوګوري چه دَ دهٔ ژبه قوی او غټه شوے ده۔ تعبیر ئې په خپل مقابل به غالبه کیږی۔ او که اوګوري چه ژبه ئې زخمی شوے ده۔ تعبیر ئې په چا به تهمت لګوی او یا به دروغ وائی، او که اوګوري چه ژبه ئې وېښته توکیدلے دی تعبیر ئې دَ خبرو په وجه به بلا کانو کښې پریوځی او که اوګوري چه دَ دهٔ ژبه پرسیدلے ده، تعبیر ئې دَ دهٔ دَ خبرو دَ وجه نه به دهٔ ته مال ملاوېږی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی، که اوګوري چه دَ دهٔ ژبه دوه ښاخه شوے ده۔ تعبیر ئې دا دے به منافق وی۔ که اوګوري چه دَ دهٔ ژبه نشته دے تعبیر ئې دَ ټولو کارونو نه به کمزورے وی۔ او که اوګوري چه دهٔ دَ ژبے سر نشته او پریکړے شوے دے لکه خبرے نهٔ شوے کولے تعبیر ئې دَ دهٔ کار به دَ وکیل په لاس باندے واپس شی او که اوګوري چه دَ دهٔ ژبه وچه شوے ده تعبیر ئې په معنیٰ کښې بد دے۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ ژبے لیدل په خوب کښې په شپږو وجو دی (۱) حکمت (۲) ریاست (۳) ترجمان (۴) حاجت (۵) وکیل (۶) دوست

## ژړا (ګریستن)

که اوګوري چه په مخ ئې دَ ژړا نخښې دی تعبیر ئې دَ نیک کار په وجه به خلک پېغورونه ورکوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی په خوب کښې ژړا تعبیر ئې خوشحالی ده او دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه بخښش دے۔ که اوګوري چه په کتاب یا دَ څهٔ علم مجلس یا قرآن مجید لوستلو کښې اوژاړی او، یا بله داسے موقعه کښې چه داسے وی، تعبیر ئې دَ الله تعالیٰ په کرم باندے چه په دهٔ به خپل فضل او رحمت کوی او ګناه به دَ دهٔ

ادبخښي. که اوګوري چه ژړلي دي او اوښکې ئې د سترګو نه دي وتلي تعبیر ئې د تیر کار نه کولو نه به افسوس کوي او توبه کوي او که د یو کار کولو په مصیبت باندې بغیر د زارۍ ئې ژړلي دي تعبیر ئې خوشحالي اور احت به اُو موی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، که اوګوري چه وې ژړل او بیائې وخندل، تعبیر ئې د دهٔ مرګ نزدې دې. د الله تعالیٰ کلام دې (هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى) النجم ۴۳ : هغه خندي او ژړوي.

## ژړاکول (نوحه کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که خوب کښې خوک اوګوري چه ژړا کوي، تعبیر ئې هغه ځائې به په دهٔ مبارک نهٔ وي او د هغه ځائې مشران خلک به بے اتفاقه شي. که خوب کښې اوګوري چه د هغه ښار والي مړ شوے دے او خلک ورباندې ژړا کوي. تعبیر ئې دهٔ ته به د هغه والي نه ظلم او زیاتے رسیږي. او ځنې معبرین وائي چه د هغه ښار والي به تر اوسه خوشحاله وي. او که اوګوري چه خلک نوحه سره ژاړي تعبیر ئې د کوم ظالم نه به بے انصافي او ظلم اُو موي. او هغهٔ نه به غمژن او عاجزوي.

حضرت کرمانیؒ فرمائي، که اوګوري چه ژړا کوي او شور کوي، تعبیر ئې دهٔ ته به غم او فکر او نقصان رسیږي. که اوګوري چه ژاړي او رو رو نوحه کوي تعبیر ئې خوشحالي او ښادي ده. که اوګوري چه د ښځو سره ډیر سرې دي او نوحه کوي او په اوچت نوحه (ستائنې) ژړا کوي، دے ځائې خلکو ته به د بادشاه په وجه غم او فکر رسیږي.

## ژمے، (د یخنۍ موسم) (زمستان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې ژمے لیدل د بادشاه دے. که په خوب کښې اووینې چه ژمے دے او خلک ورته تنګوالے محسوسوي تعبیر ئې د هغه ملک خلکو ته به د بادشاه نه ضرر رسیږي. که اوګوري چه ژمے دے او هوا یخه ده او چا ته ضرر نهٔ رسوي او نهٔ چا ته نقصان ورکوي تعبیر ئې د هغه ملک خلک به د بادشاه نه نفع مومي او په خپل وخت کښې ژمے لیدل تعبیر ئې نصرت او په دښمن کامیابي ده.

## "س" په خوب کښې قرآني سورتونه لوستل

## سورة الفاتحه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری په خوب کښے چه سورة فاتحه ئے لوستلے ده. تعبیرئے عمربه ئے اوږدشی او دَ ژوند خاتمه به ئے په ایمان وی.

## سورة البقره

دَدے لوستل په خوب کښے همدغه تعبیرلری اودَ دښمنانو دَ شرنه به امن کښے شی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی دَخلکوپه منځ کښے به رښتیا ویونکے وی که فقیروی نومال داره به شی، که بیماروی نوښه به شی. اوکه غمژن وی خوشحال به شی. اوکه غلام وی، نوازاد به شی.

## سورة آل عمران

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه سورة آل عمران لولی، تعبیرئے، دَ ټولو بدو نه به امن کښے شی اوپاک به شی اوعاقبت به ئے په خیروی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی چه که وګوری چه دشهدالله آیت ئے لوستلے دے تعبیرئے دَ الله تعالیٰ په فیصلو به راضی وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که قرضداره وی نو دَ قرض نه به خلاص شی او خلک به ئے عزت کوی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری چه قُلِ اللّٰھُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ لولی تعبیرئے دادے چه بزرګی، عزت، مرتبه به مومی او مرادونه به ئے پوره شی.

## سورة النسآء

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری په خوب کښے چه سورة النسآء ئے وئیلے دے، تعبیرئے میراث به بیا مومی او اهل بیت به ئے زیات شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، مال او نعمت به ئے ډیرشی.

## سورة المائده

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی. که اوګوری په خوب کښے چه سورة المائده لوستلے ده، تعبیرئے، عزت، بزرګی به بیا مومی. حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ سورة المائده لوستل په خوب کښے تعبیرئے په صحت مندی اوسلامتیا دے.

## سورة الانعام

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة الانعام تلاوت کړی، تعبیرئے دَ دُنیا او آخرت نیکبختی به بیا مومی. حضرت کرمانیؒ فرمائی چه ډیرخټور به حاصل کړی

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه دَ احسان (نیکی) او سخاوت توفیق به بیا مومی.

## سورۃ الاعراف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که او کوری په خوب کښې چه سورۃ الاعراف ئې لوستلې، تعبیر ئې، دے به دیندار او مؤمن او انجام به ئې ښۀ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ سورۃ اعراف لوستل په خوب کښې، تعبیر ئې دَ کوم طور زیارت لیدل به ئې نصیب شی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښې دَ سورۃ اعراف لوستل تعبیر ئې خلک به ورته خوشحاله وی او دَ امانت حفاظت به کوی۔

## سورۃ الانفال

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې او کوری چه سورۃ الانفال ئې لوستلے دے. تعبیر ئې دا دے چه خیر او صلاح به بیا مومی۔

## سورۃ التوبۃ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې او کوری چه سورۃ التوبۃ ئې لوستلې، تعبیر ئې دا دے چه دَ گناه نه به توبه کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که خوب کښې او کوری چه سورۃ التوبۃ ئې لوستلے تعبیر ئې دَ کارونو انجام به ئې په خیر سره وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ دین په لاره کښې به بے مثاله وی۔

## سورۃ یونس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې او کوری چه سورۃ یونس ئې تلاوت کړے، تعبیر ئې دَ دۀ رزق به فراخه شی او کار به ئې سرته (مراد) ته اُورسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ کافرو او جادوگرو دَ قریب نه به لرے وی او په دښمنانو به فتحه حاصله کړی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی دَ دۀ الفاظ او عبارت به ښۀ شی۔

## سورۃ هود

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که او کوری په خوب کښې چه دَ سورۃ هود تلاوت کوی، تعبیر ئې، دَ دۀ رزق به دَ زمیندارئ نه وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ محنت او تکلیف نه روسته به عزت او مرتبه بیا مومی او ټولو کښې به نیک وی او په ټولو کارونو کښې به بختور وی

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَدین په لاره کښې به بې مثاله وی.

## سورة یوسف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که خوب کښې اوګوری چې سوره یوسف ئې تلاوت کړې تعبیرئې ډیرسفربه کوی او مال به مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَغم اوخواری نه به روسته عزت او مشری بیا مومی او هرکاربه ئې اوچت وی (مزوکښې به وی)

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خبرو او امانتونو کښې به امین وی.

## سورة الرعد

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که خوب کښې اوګوری چې سورة الرعد ئې لوستلې دے، تعبیرئې دَعبادت او دَ قرآن کریم په لوستلو به مشغول شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، او دَخیر او نیکی په کارونو کښې به د لچسپ وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، تعبیرئې دادے چې عمربه ئې لنډ وی.

## سورة ابراهیم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که خوب کښې اوګوری چې دَ سورة ابراهیمؑ ئې تلاوت کړی، تعبیرئې همیشه به خیراو اطاعت په کارونو کښې مشغول وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ خدائے په وړاندې به دَ عزت خاوند وی، او انجام به ئې ښهٔ وی.

## سورة الحجر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې اوګوری چې سورة الحجرئې تلاوت کړے، تعبیرئې، الله تعالیٰ ته به مقرب وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، هرامید چه لری پوره کیږی به.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، الله تعالیٰ به ورته علم ورکړی او حاجتونه به ئې پوره کړی.

## سورة النحل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوری چه سورة النحل ئې لوستلې دے، تعبیرئې حلال رزق به بیا مومی او دَ دیندارو خلکو به دوست وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ مشقت او آفت نه به په امن کښې وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، الله تعالیٰ به ورته علم نصیب کړی.

## سورة بنی اسرائیل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة بنی اسرائیل ئے لوستلے دے، تعبیرئے دَ الله تعالیٰ په وړاندے به نزدیوالے بیا موهی. او په دُنیا کښے به عزت او مرتبه بیا موهی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په دښمن به غلبه بیا موهی او کاروبار به ئے سرته ورسیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دین او عقیده به ئے پاکه شی.

## سورة الکهف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة الکهف ئے لوستلے دے. تعبیرئے دَ ټولو بلاګانو نه به امن کښے وی. او دَدین په لاره کښے به بے مثاله او اخلاص مند وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، عمر به ئے اوږد شی او دَ آخرت سعادت به بیا موهی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، د ومره عمر به موهی چه مراد ته به رسیږی.

## سورة مریم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة مریم تلاوت کوی، تعبیرئے، دَ قیامت په ورځ به دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه دَ الله تعالیٰ په امن کښے وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ نیکو لاره به نیسی او دَ رسول کریمؐ سنت به په ځائے راوړی.

## سورة طٰهٰ

حضرت ابن سیرین فرمائی، که خوب کښے اوګوری چه سورة طٰهٰ ئے تلاوت کړے، تعبیرئے دښمن ته به څه ضرره کوی او هغه به مغلوبوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په وطن کښے به دَ دهٔ نوم په نیکی مشهور شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَدین په لاره کښے به بے مثاله او مشهور شی.

## سورة الانبیاء

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری چه سورة الانبیاء ئے لوستلے دے. تعبیرئے الله تعالیٰ به ورته دَ انبیاء علیهم السّلام اخلاق او خوی ورکړی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ دواړو جهانونو نیکبختیا به بیا موهی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، تعبیرئے عالم او هوښیار به شی او دَ مشقت نه به اسانی بیا موهی.

## سورة الحج

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښے اوګوری چه سورة الحج ئے تلاوت کړے، تعبیرئے، خپل مال به دَ الله تعالیٰ په لاره

کښے خرج کړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی چه غوره او پسندیده کاروته به اختیار کړی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په تقوی کښے به بیمثله او د دین په لار کښے به کوشش کوی۔

## سورة المؤمنون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که خوب کښے اوګوری چه سورة المؤمنون ئے لوستلے دے تعبیر ئے، د مؤمنانو سره به جنت ته ځی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، د دین درجے به ئے قوی وی او غوره خوی به اختیار کړی.

## سورة النور

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة النور ئے لوستلے دے۔ تعبیر ئے، زړهٔ به ئے په علم او پوهه روښانه شی۔

## سورة الفرقان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة الفرقان ئے تلاوت کړے، تعبیر ئے په حقه سره به د باطل د لارے نه جُدا شی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی د خلکو په منځ کښے به منصف او عادل وی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی د باطل لارے نه به د حق لارے ته راشی۔

## سورة الشعراء

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة الشعراء ئے تلاوت کړے تعبیر ئے، د الله تعالیٰ په پناه کښے به وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، د ګناه نه به پاک شی او د دین په لاره کښے به کوشش کوونکے شی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی الله تعالیٰ به ئے د بے حیائی نه بچ ساتی۔

## سورة النمل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة النمل ئے لوستلے دے تعبیر ئے دا دے چه مشری به بیامومی
حضرت کرمانیؒ فرمائی دولت او نصیب به ئے موافقه کوی۔
حضرت امام جعفرصادق فرمائی چه د ده مال او نعمت به زیات وی۔

## سورة القصص

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة القصص ئے لوستلے دے۔ تعبیر ئے

مال او نعمت به بیا مومی او دَ الله تعالیٰ په ذکر به مشغول شی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، تل به دَ دین په لاره کښې کوشش کوی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ رحمت دروازے به په دهٔ پرانستے شی.

## سورة العنکبوت

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة العنکبوت ئے لوستلے دے تعبیر ئے، دَ مرګ په وخت کښې به دَ الله تعالیٰ په حفاظت کښې وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ غم او بلاګانو نه به امن کښې وی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، خلکو ته به دَ دهٔ صلاحیت او نعمت نصیب کیږی.

## سورة الروم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوری چه سورة الروم ئے لوستلے دے، تعبیر ئے دَ دهٔ په لاس به دَ روم ښار فتحه کیږی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ دین او دَ جهاد په لاره کښې کوشش کوونکے وی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، خلکو ته به دَ دهٔ دَ دین نه ښیګړه نصیب شی.

## سورة السجدة

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة السجدة تلاوت کړی، تعبیر ئے دَ سجدے په حالت کښې به دَ دنیا نه سفر کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، الله تعالیٰ ته به ډیرے سجدے کوی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ کار انجام به ئے ښهٔ وی.

## سورة الاحزاب

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوری چه سورة الاحزاب تلاوت کړی، تعبیر ئے دا دے چه مال به مومی او دښمن ته به ئے ورکوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة الاحزاب ئے تلاوت کړے دے، تعبیر ئے نسل دینار به بیا مومی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوری چه سورة الاحزاب ئے تلاوت کړے، دَ الله تعالیٰ تابعداری به ئے په نصیب شی.

## سورة السباء

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة السباء ئے تلاوت کړے دے تعبیر ئے، تقویٰ دار به او عبادت کوونکے به وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په عبادت کښې به هر وخت مصروف وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ صالحانو خوی به خپل کړی.

## سورة الفاطر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې اوګوری چه سورة الفاطر ئې تلاوت کړے تعبیر ئې، آخرانجام به ئې ښهٔ وی
حضرت کرمانیؒ فرمائی، په عبادت کښې به هر وخت مشغول وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، نعمتونه به ورباندې پرانستے شی.

## سورة یٰس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة یٰس ئې تلاوت کړے تعبیر ئې انجام به ئې په خیر وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، عمربه ئې اوږد وی او دَ الله تعالیٰ نه به نعمتونه بیا مومی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مینه او دوستی به ئې په زړهٔ کښې برابر وی.

## سورة الصافات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة الصافات ئې تلاوت کړے، تعبیر ئې دَ الله تعالیٰ دَ طرفه به دَ دین په هدایت کښې مدد بیا مومی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ اصلاح په لار به راشی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، صالح او نیک عمله خوی به ئې پیدا شی.

## سورة صٓ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة صٓ ئې تلاوت کړے، تعبیر ئې مال به ئې زیات شی او مشر او سردار به شی.

## سورة الزمر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة الزمر ئې تلاوت کړے، تعبیر ئې الله تعالیٰ به ئې ټول ګناهونه معاف کړی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ کار اخیر انجام به ئې خیر وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه دَ دهٔ دین به قوی وی.

## سورة مؤمن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سورة مؤمن تلاوت کوی. تعبیر ئې اخلاص مند مؤمن او ایماندار به وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ شریعت حفاظت به کوی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه رحمت او بخښنه به ورته وکړے شي.

## سورة فصّلت

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورت فصّلت تلاوت کوی تعبیرئے دَ الله تعالیٰ په نزدے خلکو کښے به وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، همیشه به دَ دین په جوړښت کښے بوختیا وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ الله تعالیٰ نه به دُعا غوښتونکے وی او دُعا به ئے قبلیږی.

## سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ تلاوت کوی، تعبیرئے په آخرت کښے به دَ عذاب نه خلاص وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، همدغه تعبیرئے دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، عمر به ئے اوږد وی.

## سورة الزخرف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الزخرف تلاوت کوی. تعبیرئے اطاعت او موخ به ډیرکوی او همیشه به روژه دار وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، ربښتیا ویونکے او نیک عمله به وی.

## سورة الدخان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الدخان تلاوت کوی، تعبیرئے دَ شپے به عبادت کوی. حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ ربښتیا ویلو کوشش به کوی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه مالدار به شی.

## سورة الجاثیه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الجاثیه تلاوت کوی، تعبیرئے دا دے چه توبه به کوی او دَ الله تعالیٰ طرف ته به رجوع کوی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، که ګناه ګار وی نو توبه به اوباسی.

## سورة الاحقاف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الاحقاف تلاوت کوی، تعبیرئے دَ مور او پلار حکم به په ځائے کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ مور او پلار سره به نیکی کوی او عجیبه شیان به ګوری.

## سورة محمدؐ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة محمدؐ تلاوت کوی، تعبیرئے په دښمنانو

په کامیابي مومي۔ حضرت کرمانيؒ فرمائي، دَ آفت او بلا نه به امن کښې وي.
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي، په دنیا کښې به دَ خیر توفیق مومي۔

## سورة الفتح

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الفتح تلاوت کوي تعبیر ئې دَ ټولو دروازو نه به ورته برے او مداد وي۔

## سورة الحجرات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الحجرات تلاوت کوي، تعبیر ئې خلک به په ښو نو موتو سره نابلي او غیبت به نهٔ کوي۔
حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائي، دَ چا شرم ګاه ته به نظر نهٔ کوي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ خلکو سره به ملاویږي.

## سورة الذاریات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الذاریات تلاوت کوي، تعبیر ئې دا دے چه په اطاعت او عبادت کښې به مشغول وي.
حضرت کرمانيؒ فرمائي چه دَ الله تعالیٰ دَ مخلوق سره به ښیګړه او احسان کوي.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائي چه دَ دهٔ به روزي فراخه وي.

## سورة قاف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة قاف تلاوت کوي، تعبیر ئې دهٔ ته به الله تعالیٰ دَ خیر او جوړښت دَ کارونو توفیق ورکوي.
حضرت کرمانيؒ فرمائي، مشکل او سخت کارونه به په دهٔ اسان شي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ حپل کسب نه به نصیب بیا مومي.

## سورة الطور

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الطور تلاوت کوي. تعبیر ئې په دښمن به برے مومي۔
حضرت کرمانيؒ فرمائي، الله تعالیٰ به ئې مدد کوي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په بیت الله شریف کښې به عبادت کوي.

## سورة النجم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة النجم تلاوت کوي، تعبیر

ئے ، اللہ تعالیٰ بہ وربانل ے دَ رحمت دروازے پرانیزی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی ، په دښمن به کامیابی حاصلوی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه اللہ تعالیٰ به ورته نیک صالح خوی ورکړی۔

## سورۃ القمر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی' که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورۃ القمر تلاوت کوی' تعبیر ئے په دُښمن به کامیابی حاصلوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی' مشکل او سخت کارونه به پرے اسان شی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی' چه په دهٔ به جادو اثر نهٔ کوی۔

## سورۃ الرحمٰن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی' که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورۃ الرحمٰن تلاوت کوی' تعبیر ئے دَ دروغو او حراموته به پرهیز کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی' نیک خوی او دَ دین لاره به اختیاروی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په دَ دُنیا کښے به مال او آخرت کښے به نعمت مومی۔

## سورۃ الواقعه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورۃ الواقعه تلاوت کوی' تعبیر ئے دادے چه دَ ګناهونو نه به توبه کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی' دَ اطاعت توفیق به بیا مومی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په عبادت کښے به وړاندے والے کوی۔

## سورۃ الحدید

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی' که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورۃ الحدید تلاوت کوی تعبیر ئے' روزی به په سختی سره لاس ته راوړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی' دَ آخرت لاره به خوښوی او دَ اللہ تعالیٰ دَ رضا کولو تلاش به کوی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی' دَ دین په لاره کښے به قابل تعریف وی۔

## سورۃ المجادله

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی' که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورۃ المجادله تلاوت کوی. تعبیر ئے دادے چه دَ دهٔ جګړه به دَ ښځو سره وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ دین په لاره کښے به دَ خلکو سره جګړه کوی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَخپل اهل سره به جګړه کوی۔

## سورة الحشر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الحشر تلاوت کوی، تعبیر ئې دا دے چه دَدهٔ حشر به دَ اخلاص والو سره وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، صحبت به ئې دَ دیندارو او نیکانو سره وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په دښمن به کامیابی حاصلوی۔

## سورة الممتحنه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الممتحنه تلاوت کوی، تعبیر ئې دَ کار ازمائش به په راستی سره کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، ملګرتیا به ئې دَ نیکانو سره وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په داسے خواری کښې به ګرفتار شی چه په هغې کښې به مرشی۔

## سورة الصف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الصف تلاوت کوی، تعبیر ئې دَ خدائے په لاره کښې به جهاد کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، همیشه به دَ الله تعالیٰ په رضا کښې وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په آخر عمر کښې به شهادت مومی۔

## سورة الجمعه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الجمعه تلاوت کوی، تعبیر ئې، الله تعالیٰ به ورته توبه نصیب کړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ نیکی توفیق به بیا مومی۔

## سورة المنافقون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة المنافقون تلاوت کوی، تعبیر ئې دا دے چه منافق به وی۔ حضرت امام جعفرصادق فرمائی، دَ منافقت نه به توبه اوباسی۔

## سورة التغابن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة التغابن تلاوت کوی، تعبیر ئې زیاتے صدقه به ورکوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ غریبانانو مدد به کوی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دښتیا ویونکے او دَ صحیح حالاتو والا به وی۔

## سورۃ الطلاق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الطلاق تلاوت کوی، تعبیر ئې دا دے چه دَ بخُو سره به خبرے کوی. حضرت کرمانیؒ فرمائی چه دَحق خوی حفاظت به کوی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَدین دَ کار دَ پاره به خبرے کوی.

## سورۃ التحریم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ التحریم تلاوت کوی، تعبیر ئې په خپل کور کښې به دَ منافقت او بے اتفاقی خبرے کوی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَحرامونه به توبه وکړی او ورنه به لرے شی.

## سورۃ الملک

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الملک تلاوت کوی تعبیر ئې دا دے چه په دهٔ به دَ قبر عذاب نهٔ وی. حضرت کرمانیؒ فرمائی انجام به ئې ښهٔ وی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، عزت او مشری به بیا مومی.

## سورۃ القلم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ القلم تلاوت کوی. تعبیر ئې صدقه ورکول او دَ خیر کارونه به خوښوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ هرچا سره به نیکی کوی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی. الله تعالٰی به دَ دهٔ صبر او بردباری نصیب کړی.

## سورۃ الحاقۃ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الحاقه تلاوت کوی، تعبیر ئې دَ الله تعالٰی فرائض به په ښهٔ طریقه ادا کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، حق خوئی به اختیار وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ شرع په طریقه به وی.

## سورۃ المعارج

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ المعارج تلاوت کوی تعبیر ئې ډیرے زیاتے نیکیانے به کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ نیکړے او نیکو طرف ته به مائله وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ خطرے او ویرے نه به په امن کښے وی.

## سورة نوح

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة نوح تلاوت کوی، تعبیرئے توبه به اوباسی او انجام به ئے ښهٔ وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، همدغه تعبیرئے دے۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په نیکئ به خلکوته امرکوی۔

## سورة الجن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه سورة الجن تلاوت کوی، تعبیرئے توبه به اوباسی او دَ جناتو دَ آفت نه به بچ وی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دیوان اوبناپیری به ورته نقصان نشی رسولے

## سورة المزمل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی۔که په خوب کښےاوګوری چه دَ سورة المزمل تلاوت کوی تعبیرئے، دَ شپے مونځ به خوښوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ اطاعت اوبندګئ توفیق اومدد به بیامومی

## سورة مدثر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة مداد تلاوت کوی، تعبیرئے صالح او نیک عمل به کوی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی پاک خوی اونیغه لاره به بیامومی۔

## سورة القیٰمة

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة القیٰمة تلاوت کوی، تعبیر ئے، دَ دُنیا نه به دَ شهادت سره ځی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، توبه به اوباسی اوالله تعالیٰ ته به رجوع کوی۔

## سورة الانسان (الدهر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښےاوګوری چه دَسورة الانسان تلاوت کوی، تعبیرئے فقیرانو ته به ډوډی ورکوی اودَ الله تعالیٰ رضا به تلاش کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، په سخاوت اونعمت باندے به دَ شکرتوفیق بیامومی۔

## سورة المرسلات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ سورة المرسلات تلاوت کوی، تعبیرئے دا دے چه دَ دروغو وئیلو نه به توبه کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی نیغه اومستقیمه لاره به لټوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، روزی به ورباندے فراخه شي۔

## سورة النباء

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې څوک اوګوري چه دَ سورة النباء تلاوت کوي، تعبیر ئې دا چه الله تعالیٰ نه به ویریږي ونکے او په الله تعالیٰ باندے به توکل کوونکے وي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ خیر کار به کوي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کاروبار به ئې ډیر لوے شي۔

## سورة النازعات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة النازعات تلاوت کوي تعبیر ئې، دَ ژوندون په وخت کښې به دَ مرګ نه نه یریږي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، توبه به اوباسي او دَ عذاب نه به امن کښې وي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، زړه به ئې دَ چل او چیلے او خیانت نه پاک وي۔

## سورة عبس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه سورة عبس تلاوت کوي، تعبیر ئې خلکو ته به ښئے تربیو کوي۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، زیاتے روژے به نیسي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، نیکي به کوي۔

## سورة التکویر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة التکویر تلاوت کوي تعبیر ئې دَ سترګو دَ درد نه به ئې یره نه وي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ مشرق طرف ته به ډیر سفر کوي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه دَ څه شي نه یریږي نو هغه نه به امن کښې وي۔

## سورة الانفطار

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب چه دَ سورة الانفطار تلاوت کوي، تعبیر ئې، دَ الله تعالیٰ نه به ویریږي۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ دُنیا مال طرفته به ئې میلان وي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ بادشاهانو په وړاندے به ګران او محترم وي۔

## سورة المطففین

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوري، چه دَ سورة المطففین تلاوت کوي، تعبیر ئې ناپ او پیمانه به صحیح ساتي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ سمے لارے او ریښتیا ویلو تلاش به کوي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ هرچا سره به اِنصاف کوی۔

## سورۃ الانشقاق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الانشقاق تلاوت کړی، تعبیرئے دَ قیامت په ورځ به ورته عملنامه په ښی لاس ورکول کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په قیامت کښې به ورسره حساب کتاب ایمان او تصدیق سره آسان کیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَدهٔ نسل به ډیر شی۔

## سورۃ البروج

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ البروج تلاوت کړی، تعبیرئے په دُنیا کښې به غمژن وی خو اخر انجام دَ کارونو به ئے ښهٔ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په آخرت کښې به ئے اوچتے درجے وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ غمونو نه به خلاصے بیا مومی۔

## سورۃ الطارق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الطارق تلاوت کوی، تعبیرئے صالح او نیک عمله ځوی به ئے کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَدهٔ به صالح (ښهٔ) ځوی کیږی۔ حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ ځوی دَ وجے نه به خوش بخته او خوشحاله وی۔

## سورۃ الاعلیٰ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الاعلیٰ تلاوت کوی، تعبیرئے، ډیر زیات تسبیح او لا اله الا الله ذکر به کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، ژبه به ئے په حق ذکر مشغوله وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، سخت مشکل به ورته اسانه شی۔

## سورۃ الغاشیه

که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الغاشیه تلاوت کوی، تعبیرئے دَ قیامت سختونه به پریږدی او توبه به اوباسی او دَ هغې یرے نه به امن کښې شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ الله تعالیٰ په رضا کښې به ثابت قدم وی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، عزت او مرتبه به ئے اوچته شی۔

## سورۃ الفجر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الفجر تلاوت ئے کړے، تعبیرئے دَ نیکی

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه رحمت او بخښنه به ورته وکړے شي.

## سورة فصّلت

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورت فصّلت تلاوت کوی تعبیر ئے دَالله تعالیٰ په نزدے خلکو کښے به وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، همیشه به دَدین په جو ړښت کښے لګیا وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی دَالله تعالیٰ نه به دُعا غوښتونکے وی اودُعا به ئے قبلیږی.

## سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ تلاوت کوی، تعبیر ئے په آخرت کښے به دَ عذاب نه خلاص وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، همدغه تعبیر ئے دے.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، عمر به ئے اُوږد وی.

## سورة الزخرف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَسورة الزخرف تلاوت کوی. تعبیر ئے اطاعت اوموځ به ډیرکوی او همیشه به روژه دار وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، ربنتیا ویونکے اونیک عمله به وی.

## سورة الدخان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَسورة الدخان تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ شپے به عبادت کوی. حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ ربنتیا وئیلو کوشش به کوی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه مال ئے ارزه به شي.

## سورة الجاثیه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الجاثیه تلاوت کوی، تعبیر ئے دا دے چه توبه به کوی او دَ الله تعالیٰ طرف ته به رجوع کوی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، که ګناه ګاروی نوتوبه به اوباسی.

## سورة الاحقاف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الاحقاف تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ مورد او پلار حکم به په ځائے کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ مور او پلار سره به نیکی کوی او عجیبه شیان به ګوری.

## سورة محمدؐ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة محمدؐ تلاوت کوی، تعبیر ئے په دښمنانو

په کامیابی مومي۔ حضرت کرمانیؒ فرمائي، دَ آفت او بلا نه به امن کښې وي.
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي، په دنیا کښې به دَ خیر توفیق مومي۔

## سورة الفتح

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الفتح تلاوت کوي، تعبیر ئې دَ ټولو دروازونه به ورته پرے او مدد وي۔

## سورة الحجرات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الحجرات تلاوت کوي، تعبیر ئې خلک به په بشونومونو سره رابلي او غیبت به نهٔ کوي۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائي، دَچا شرمګاه ته به نظر نهٔ کوي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ خلکو سره به ملاویږي.

## سورة الذاریات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الذاریات تلاوت کوي، تعبیر ئې داده چه په اطاعت او عبادت کښې به مشغول وي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي چه دَ الله تعالیٰ د مخلوق سره به ښیګړه او احسان کوي.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائي چه دَ دهٔ به روزي فراخه وي.

## سورة قاف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة قاف تلاوت کوي، تعبیر ئې دهٔ ته به الله تعالیٰ دَ خیرا وجوړښت دکارونو توفیق ورکوي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي، مشکل او سخت کارونه به په دهٔ اسان شي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ حپل کسب نه به نصیب بیا مومي.

## سورة الطور

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الطور تلاوت کوي. تعبیر ئې په دښمن به برے مومي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائي، الله تعالیٰ به ئې مدد کوي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په بیت الله شریف کښې به عبادت کوي.

## سورة النجم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة النجم تلاوت کوي۔ تعبیر

ئے، الله تعالیٰ به ورباندے دَ رحمت دروازے پرانیزی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، په دښمن به کامیابی حاصلوی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه الله تعالیٰ به ورته نیک صالح ځوی ورکړی۔

## سورة القمر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة القمر تلاوت کوی، تعبیر ئے په دُښمن به کامیابی حاصلوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، مشکل او سخت کارونه به پرے اسان شی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، چه په دهٔ به جادو اثر نهٔ کوی۔

## سورة الرحمٰن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الرحمٰن تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ دروغو او حرامونه به پرهیز کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، نیک خوی او دَ دین لاره به اختیار ردی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په دَ دُنیا کښے به مال او آخرت کښے به نعمت مومی۔

## سورة الواقعه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الواقعه تلاوت کوی، تعبیر ئے دا دے چه دَ ګناهونو نه به توبه کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ اطاعت توفیق به بیا مومی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په عبادت کښے به وړاندے والے کوی۔

## سورة الحدید

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الحدید تلاوت کوی تعبیر ئے، روزی به په سختی سره لاس ته راوړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ آخرت لاره به خوښوی او دَ الله تعالیٰ دَ رضا کولو تلاش به کوی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ دین په لاره کښے به قابل تعریف وی۔

## سورة المجادله

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة المجادله تلاوت کوی۔ تعبیر ئے دا دے چه دَ دهٔ جګړه به دَ ښځو سره وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ دین په لاره کښے به دَ خلکو سره جګړه کوی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ خپل اهل سره به جګړه کوی۔

## سورة الحشر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الحشر تلاوت کوی، تعبیر ئې داد ے چه دَ دهٔ حشر به دَ اخلاص والو سره وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، صحبت به ئې دَ دیندارو او نیکانو سره وی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په دشمن به کامیابی حاصلوی۔

## سورة الممتحنه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الممتحنه تلاوت کوی، تعبیر ئې دَ کار ازمائش به په راستی سره کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، ملګرتیا به ئې دَ نیکانو سره وی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په داسے خواری کښې به ګرفتار شی چه په هغې کښې به مړ شی۔

## سورة الصف

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الصف تلاوت کوی، تعبیر ئې دَ خدائے په لاره کښې به جهاد کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، همیشه به دَ الله تعالیٰ په رضا کښې وی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په آخر عمر کښې به شهادت مومی۔

## سورة الجمعه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الجمعه تلاوت کوی، تعبیر ئې، الله تعالیٰ به ورته توبه نصیب کړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ نیکی توفیق به بیا مومی۔

## سورة المنافقون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة المنافقون تلاوت کوی، تعبیر ئې داد ے چه منافق به وی۔ حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ منافقت نه به توبه اوباسی۔

## سورة التغابن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة التغابن تلاوت کوی، تعبیر ئې زیاتے صدقے به ورکوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ غریبانانو مدد به کوی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، رښتیا ویونکے او دَ صحیح حالاتو والا به وی۔

## سورۃ الطلاق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الطلاق تلاوت کوی، تعبیر ئے دا دے چه دَ ښځو سره به خبرے کوی. حضرت کرمانیؒ فرمائی چه دَحق خوی حفاظت به کوی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَدین دَکار دَ پاره به خبرے کوی.

## سورۃ التحریم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ التحریم تلاوت کوی تعبیر ئے په خپل کور کښې به دَ منافقت او بے اتفاقی خبرے کوی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَحرامونه به توبه وکړی او ورنه به لرے شی.

## سورۃ الملک

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الملک تلاوت کوی تعبیر ئے دا دے چه په دهٔ به دَ قبرعذاب نهٔ وی. حضرت کرمانیؒ فرمائی انجام به ئے ښهٔ وی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی عزت او مشری به بیا مومی.

## سورۃ القلم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ القلم تلاوت کوی. تعبیرئے صدقه ورکول او دَخیر کارونه به خوښوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَهرچا سره به نیکی کوی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی. الله تعالیٰ به دَ دهٔ صبر او بردباری نصیب کړی.

## سورۃ الحاقة

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ الحاقه تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ فرائض به په ښهٔ طریقه ادا کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، حق خوئی به اختیار وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ شرع په طریقه به وی.

## سورۃ المعارج

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورۃ المعارج تلاوت کوی تعبیر ئے، ډیرے زیاتے نیکیانے به کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ نیکړے او نیکو طرف ته به مائله وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَخطرے او ویرے نه به په امن کښې وی.

## سورۃ نوح

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورۃ نوح تلاوت کوی، تعبیر ئې توبه به اوباسی او انجام به ئې ښۀ وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، همدغه تعبیر ئې دے۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په نیکئ به خلکو ته امر کوی۔

## سورۃ الجن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوري چه سورۃ الجن تلاوت کوی، تعبیر ئې توبه به اوباسی او دَ جناتو دَ آفت نه به بچ وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دیوان او بناپیری به ورنه نقصان نشی رسولے

## سورۃ المزمل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی۔ که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورۃ المزمل تلاوت کوی تعبیر ئې، دَ شپې مونځ به خوښوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ اطاعت او بندګی توفیق او مدد به بیا مومی

## سورۃ مدثر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورۃ مدد تلاوت کوی، تعبیر ئې صالح او نیک عمل به کوی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی پاک خوی او نیغه لاره به بیا مومی۔

## سورۃ القیمۃ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورۃ القیمۃ تلاوت کوی، تعبیر ئې، دَ دُنیا نه به دَ شهادت سره ځی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، توبه به اوباسی او الله تعالیٰ ته به رجوع کوی۔

## سورۃ الانسان (الدھر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورۃ الانسان تلاوت کوی، تعبیر ئې فقیرانو ته به ډوډی ورکوی او دَ الله تعالیٰ رضا به تلاش کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، په سخاوت او نعمت باندے به دَ شکر توفیق بیا مومی۔

## سورۃ المرسلات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوري چه دَ سورۃ المرسلات تلاوت کوی، تعبیر ئې دا دے چه دَ دروغو ویلو نه به توبه کوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی نیغه او مستقیمه لاره به لټوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، روزی به ورباندے فراخه شی۔

## سورة النباء

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې څوک اوګوري چه دَ سورة النبأ تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ نه به ډیرېږي ونکے او په الله تعالیٰ باندے به ئے توکل کوونکے وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ خیر کار به کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کارونه به ئے ډیر لوے شی۔

## سورة النازعات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة النازعات تلاوت کوی، تعبیر ئے، دَ زنکدن په وخت کښې به دَ مرګ نه نهٔ یرېږي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، توبه به اوباسی او دَ عذاب نه به امن کښې وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، زړهٔ به ئے دَ چل او چیلے او خیانت نه پاک وی۔

## سورة عبس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه سورة عبس تلاوت کوی، تعبیر ئے، خلکو ته به تنګے ترېو کوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، زیاتے روژے به نیسی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، نیکی به کوی۔

## سورة التکویر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة التکویر تلاوت کوی تعبیر ئے دَ سترګو دَ درد نه به ئے یره نهٔ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ مشرق طرف ته به ډیر سفر کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه دَ څهٔ شي نه یرېږي څخه نه به امن کښې وي۔

## سورة الانفطار

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خو... چه دَ سورة الانفطار تلاوت کوی، تعبیر ئے، دَ الله تعالیٰ نه به ویرېږي۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ دُنیا مال طرف ته به ئے میلان وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ بادشاهانو په وړاندے به ګران او محترم وی۔

## سورة المطففین

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوري، چه دَ سورة المطففین تلاوت کوی، تعبیر ئے ناپ او پیمانه به صحیح ساتي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ سے لارے او رښتیا وینا تلاش به کوی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ هرچا سره به اِنصاف کوی۔

## سورة الانشقاق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الانشقاق تلاوت کړی. تعبیر ئے دَ قیامت په ورځ به ورته عملنامه په ښی لاس ورکول کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په قیامت کښے به ورسره حساب کتاب ایمان او تصدیق سره په اسانه کیږی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَده نسل به ډیر شی۔

## سورة البروج

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة البروج تلاوت کړی، تعبیر ئے په دُنیا کښے به غمژن وی خو اخر انجام دَ کارونو به ئے ښه وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په آخرت کښے به ئے اوچتے درجے وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَغمونو نه به خلاصے بیا مومی۔

## سورة الطارق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الطارق تلاوت کوی، تعبیر ئے صالح او نیک عمله خوی به ئے کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَده به صالح (ښه) خوی کیږی. حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَخوی دَ وجے نه به خوش بخته او خوشحاله وی۔

## سورة الاعلیٰ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الاعلیٰ تلاوت کوی، تعبیر ئے، ډیر زیات تسبیح او لا اله الا الله ذکر به کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، ژبه به ئے په حق ذکر مشغوله وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، سخت مشکل به ورته اسانه شی۔

## سورة الغاشیه

که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الغاشیه تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ قیامت سختونه به یریږی او توبه به اوباسی او دَ هغے یرے نه به امن کښے شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ الله تعالیٰ په رضا کښے به ثابت قدم وی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، عزت او مرتبه به ئے اوچته شی۔

## سورة الفجر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الفجر تلاوت ئے کړے، تعبیر ئے دَ نیکی

کار کښې به مشغول شي. حضرت کرمانیؒ فرمائي، دَ اسلام حج به کوي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ دهٔ هیبت او شکایت به کم وي.

## سورة البلد

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة البلد تلاوت ئې کړې، تعبیر ئې صدقه ورکول به په دهٔ واجب وي او دے به ئې خوښوي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي، دَ هر چا سره به نیکي کوي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة البلد تلاوت ئې کړے، تعبیر ئې، دَ آفتونو او بلاګانو نه به امن کښې وي.

## سورة الشمس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة الشمس تلاوت ئې کړے، تعبیر ئې، دَ دهٔ دَ لاسه به دَ فساد څهٔ کار کیږي. حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي دَ بلاګانو نه به په امن کښې وي.

## سورة اللّيل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة اللّیل تلاوت ئې کړے، تعبیر ئې سائلان به نهٔ رټي او دَ مال زکٰوة به ورکوي.

## سورة الضّحٰی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة والضحٰی تلاوت کړي، تعبیر ئې، فقیرانو ته به دَ مال زکٰوة ورکوي. حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ غریبانانو سره به مینه کوي.

## سورة المرنشرح

حضرت ابن سیرینؒ که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة المرنشرح تلاوت کوي، تعبیر ئې سختي به ورباندې اسانه شي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي، بند کارونه به ورته خلاص شي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ دواړو جهانونو مراد به مومي.

## سورة التّین

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري، چه دَ سورة التّین تلاوت کوي، تعبیر ئې نیک خویه نیک کردار او ښائسته به وي. حضرت کرمانیؒ فرمائي، تعبیر ئې خیر او نیکي به بیا مومي. حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، دَ سختۍ نه به خلاصے بیا مومي

## سورة العلق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ سورة العلق تلاوت کوي، تعبیر ئې

الله تعالیٰ به ورته علم او دَ قرآن کریم زده کړه نصیب کړی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، عالم او بلیغ ژبانه به وی. حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، عاجزانه او نیک خصلته به وی.

## سورة القدر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة القدر تلاوت کړی، تعبیر ئے دَ دُنیا نه به دَ شب قدر ثواب سره سفر کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، عمر به ئے اُوږد شی او مراد به بیا مومی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ دهٔ به عزت او اُوچته مرتبه وی.

## سورة البیّنه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة البیّنه تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ دُنیا نه به دَ توبے سره ځی. حضرت کرمانیؒ فرمائی خلکوته به دَ نیکی او دَ خیر په لار هدایت کوی. حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، همدغه تعبیر لری.

## سورة الزلزله

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة الزلزله تلاوت کړی، تعبیر ئے دَ دهٔ به دَ چا سره کار راشی او عدل او انصاف به کوی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ کافرانو یو قوم به هلاک کړی.

## سورة العادیات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة العادیات تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ دهٔ کور والا به دَ دهٔ سره مینه کوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ الله تعالیٰ په لار کښې به جهاد کوی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، جهاد به کوی او کامیابی به مومی.

## سورة القارعة

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة القارعة تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ قیامت په ورځ به دَ دهٔ دَ نیکو تله درنه وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، نیک کار کښې به کوشش کوی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ خلکو عزت به کوی.

## سورة التکاثر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ سورة التکاثر تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ

صالحانو دے ملاقات به کوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ ده ناسته به دَ درد غړنو خلکو سره وی۔ حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ دُنیا نه به بیزاره وی

## سورة العصر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة العصر تلاوت کوی، تعبیر ئے په ټولو کارونو کښے به صبرناك وی. حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ ده ته به نقصان رسیږی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ تجارت نه به ئے کار ښهٔ شی.

## سورة الهمزة

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الهمزه تلاوت کوی تعبیر ئے ډیرے خبرے به کوی او دَ خلکو په وړاندے به ذهین وی۔
حضرت کرمانی فرمائی، دَ مال به حریص وی او دَ انجام فکر به نهٔ کوی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ الله تعالیٰ په لاره کښے به مال خرچ کوی

## سورة الفیل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الفیل تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ ظالم سره به مدد کوی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، په دښمن به کامیابیږی او مراد به ئے حاصل شی۔ حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ دهٔ په لاس به فتحے کیږی او په دښمن به کامیابی مومی.

## سورة القریش

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة القریش تلاوت کوی، تعبیر ئے دَ ویرے نه به امن کښے وی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ داسے سړی سره به ئے ناسته وی چه دَ دین په لاره کښے به ئے رسوا کړی، حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، خلکو سره به نیکی کوی.

## سورة الماعون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سورة الماعون تلاوت کوی، تعبیر ئے، مونځ به صحیح طریقے سره ادا کوی. حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ بے دینه خلکو ناستے نه به ځان ساتی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په دښمن به کامیابی حاصلوی.

## سورة الکوثر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الکوثر تلاوت کوی تعبیر ئے مال او نعمت به بیا مومی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ مشرانو نه به بخشش بیا مومی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، ډیر خیراتونه به کوی.

## سورة الکافرون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه

دَ سورة الکافرون تلاوت کوی، تعبیرئے دَ بدعت لاره به نیسی او په دُنیا به مغروره وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په غم کښے وی نو خلاصے به بیا مومی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَده مرګ نزدے دے ځکه چه دا سورة نازل شو نو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم آخری عمر وو۔

## سورة النصر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة النصرتلاوت کوی، تعبیرئے دَالله تعالیٰ په لاره کښے به توکل کوونکے وی۔

## سورة تبّت

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَسورة تبّت ئےلوستلے دے، تعبیرئے دا دے چه مکاراو دهوکه بازبه وی اودَ الله تعالیٰ دَ عذاب په خطره کښے به وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَده ښځه به بد چلنه وی۔ حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه یوتهولے به ده ته دَ بنیٔ رسولوکوشش کوی۔

## سورة الاخلاص

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الاخلاص تلاوت کوی، تعبیرئے دَدین په لاره کښے به مخلص وی او دَ عبادت وتقوٰی اوپرهیزګاری توفیق به مومی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ پاک دین اوپاکے عقیدے خاوند به وی۔حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَدواړوجهانومرادبه بیامومی، او ژوند به ئے ښهٔ وی۔

## سورة الفلق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه دَ سورة الفلق تلاوت کوی، تعبیرئے جادوبه وریانسے اثرنهٔ کوی، حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَبدکردارهٔ خلکو دَ شرنه به امن کښے وی۔

## سورة النّاس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَسورة النّاس تلاوت کوی تعبیرئے الله تعالیٰ به ئے دَ بد نظرنه اوساتی او روزی به ئے فراخه وی۔
اوکه په خوب کښے اوګوری چه ولاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم لولی، تعبیرئےمال اومراد به مومی۔که په خوب کښے اوګوری چه کوم آیت دَ قرآن لولی نو دَ هغے تعبیر به حرف "ق" کښے بیان کړم انشاءالله۔

## ستن د بورئ ډکنډلو

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه په خوب کښې جوال ګنډونکے هغه سړے دے چه د خلکو کار کوي. اکثر وخت وړوکے وړوکے کار کوي او که او ګوري چه د دهٔ سړ ستن ده یا ورته چا ورکړے ده، تعبیر لے دا دے چه د دهٔ به د ښځه صفت سره صحبت کیږي. که ستن ماته یا ضائع شوه تعبیر ئے د دهٔ هلاکت دے.

## سپیغول ـ (بذر قطونا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي خوب کښې سپیغول لیدل غم او فکر دے او د دهٔ خوښ د دے مطابق د مال نقصان او د غم تعبیر دے.

## ساز د غږولو (چغانه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې د ساز لیدل بیهوده او دروغژنے خبرے دي که څوک او ګوري چه ساز غږوي تعبیر ئے دروغ او بے فائدے خبرے به کوي او یا به ورته غم او فکر ور سیږي که څوک او ګوري چه بادشاه ورته باجه ورکړے ده تعبیر ئے د بادشاه نه به غم او فکر ورته ورسیږي.

که او ګوري چه باجه ورنه پریوتے ده او یا ماته شوے ده تعبیر ئے د باطلو او دروغو نه به توبه وکړي که او ګوري چه باجه غږوي او چل نه ورځي تعبیر ئے دا دے چه که عالم وي نو خلکو ته به تعلیم ورکوي او د خپل علم نه به فائده رسوي او خلکو ته به علم حدیث، فقه او علم تفسیر ښه ده کوي او که خوب لیدونکے جاهل وي تعبیر ئے دا سے شغل به اختیاروي چه خلق به ئے ورباندے ملامته کوي او که او ګوري چه ساز سره لاسونه پرقوي او ګډیږي تعبیر ئے د غم او د مصیبت دے.

## سرینډه (بربط)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې سرینډه باطل لهو او سخت دروغ او نه کیدونکے شے دے. که او ګوري چه سرینډه وهي تعبیر ئے دروغ خبره به کوي او د چا د دروغو صفت او تعریف به کوي. که څوک او ګوري چه د دهٔ په وړاندے څوک سرینډه وهي تعبیر ئے هغه او باطل خبره به واوري. که او ګوري چه سرینډے سره رباب او چنګ وهي او شپیلئ هم ده. دا ټول د غم او مصیبت تعبیر لري چه د هغه ځائے خلکو ته به ورسیږي. که او ګوري چه سرینډه ئے ماته شوے ده او یا پریوتے ده تعبیر ئے د باطل او دروغو

وینانه به توبه اوباسي. که اوګوري چه بیمار دے او سرینډ کاوهي تعبیرئے
دَ دهٔ مرګ دے.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک اوګوري چه دَا ستاذا نوښان سرینډ
غږوي او حال داچه دهٔ ته دَ سرینډے وهلوچل نهٔ ورتلو، که عالم وي
تعبیرئے دادے چه خلکوته به په ښهٔ طریقه بیان او علم بیانوي. او
داد رُتبے واړه علمونه به ورځي (۱) تفسیر، فقه، او قصص به ورله ورځي.
اوکه اوګوري چه جاهل سړے وي تعبیرئے خلک به دے د دهٔ په شغل
ملامته کوي. که اوګوري چه دَ سرینډ ے آواز آوري، تعبیرئے دَلوئے شخه
خبر به اوري او دے شخه سره به ئے مینه وي.

## ستوان (پست)

حضرت ابن سیرین فرمائی، که اوګوري چه ستوان خوري تعبیرئے دَ هغې په اندازه
به غم او فکر تیر وي، اوکه اوګوري چه ستوان ئے چاته ورکړے دے اویائے
خرڅ کړے تعبیرئے دَ دهٔ نه به غم او فکر لرے شي.
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که اوګوري چه ستوان ورسره دي اودَ
کورنه ئے بهرغُرزولي دي اویائے چاته بخښلي دي او هیڅ ئے ورنه نهٔ دي
خوړلي تعبیرئے دَ غم نه خلاصیدل دي.

## سولئ بانډے خیژول. (بردار کردن)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي، یوه ورځ یو سړے راته راغلو
اوراته ئے اووئیل چه خوب مې لیدلے دے، خوب کښې ما ولیدل، دَ یو سړي دواړه
لاسونه پریکړے شوي دي او بل په سولئ (دار) شوے دے. ما ورته اووئیل
که ستا داخبره رښتیا وي نو نن به دَ ښار امیر معزوله (برطرفه) کړے شي
اودَ دهٔ په ځائے به بل امیر کښیني. بیا په هم هغه ورځ هم هغه وشول اودویم
امیر کیناستو.
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه څوک ئے په
سولئ خیژولے دے او خلک ئے تماشه کوي. تعبیرئے په دومره اندازه
خلکو به سردار وي. اوکه اوګوري مګر خوک ئے تماشه نهٔ کوي، تعبیرئے
شرف او بزرګي به بیا مومي مګر دَ دین په لاره کښې به بے نصیبه اوبدکاره وي
اوکه څوک خوب کښې اوګوري چه هغه په سولئ ختلے سړے غوښه خوري تعبیرئے

دُکوم مصیبت زده سړی به مال خوري، که چرے دَدهٔ اثرهم ویني او که
اوګوري چه دے په سولۍ خیژولے دے او وینه ورنه روانه ده تعبیرئے دا دے چه د
خلکو غیبت به کوي او ډیرهٔ ګناه به ورنه کیږي.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښے په سولۍ لیدل په
څلورو وجودي. (۱) سرداري او حکومت (۲) مال او دولت (۳) عزت (۴) دَخلکو غیبت

## سینه بند (پستان بند)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي په خوب کښے دَ ښځے سینه بند تعبیرئے عزت
مرتبه او مراد مونډل دي اودَ سړو دَ پاره تعبیرئے تازه زخم، غم او فکر
دے. که ښځه اوګوري چه نوے او تازه سینه بند ورسره دے، تعبیرئے
عزت، مرتبه او مراد ته به ورسیږي. که ښځه اوګوري چه سینه بند
لري تعبیرئے مال، نعمت، خوشحالي به بیامومي. او که سړے اوګوري چه
سینه بند لري، تعبیرئے دَ خپلو برابرو خلکو نه به رسوائي او نامرادي او ویني.

## سبزي (تره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه هرهغه سبزي
بے مزے او ترخه وي تعبیرئے دَ نقصان دے.

## سبزي خرخول (تره فروشي)

که یو سړے اوګوري چه سبزي خرخوي
تعبیرئے نیک دے ځکه چه دَ دهٔ
دَ لاسه دا یو کار کیږي چه دَ هغے دَ هر چا دَ پاره ضرورت دے او سبزي خوړل
په خوب کښے تعبیرئے بیماري، غریبي، غم او فکر دے.

## سختي (تنګي)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که څوک په خوب کښے
اوګوري چه دَ تنګۍ نه فراخۍ ته را غلو او دَ بد بیئه
ځائے نه امن ځائے ته را غلو. تعبیرئے ډیول کار ونه به ئے په انتظام سره
شي او دَ تکلیف نه به راحت ته راشي او که دَ دے خلاف اوګوري تعبیرئے بلاد
حضرت جابرؒ فرمائي که څوک په خوب کښے اوګوري چه په تنګ ځائے (سخت) کښے ګیر
شوے دے، تعبیرئے په سخت کار کښے به پریوځي او خلاصے به پیدا نکړي. او که
اوګوري چه هلته خوراک سخت دے تعبیرئے په دهٔ به روزي او ژوند ګی تنګه
شي او دَ ټولو شیانو تنګي په خوب کښے ښهٔ نهٔ ده.

## سترګه (چشم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي په خوب کښے سترګه
لیدل یو بینا سړے دے چه دَ هغهٔ نه به دَ

هدایت لاره مومي. او شنې سترګې بدعت دے او کلابي سترګې خوی دے که اوګوري چه پړوند شوے دے تعبیر ئے، دَهدایت لاره به ئے ورکه کړي وي او یا به ئے خوی مړشي که چرے اوګوري چه دَدهٔ سترګه پړندهٔ شوے ده. تعبیر ئے دَدهٔ نیم دین ضائع شویا ئے لویه ګناه کړے ده او یا به دَدهٔ په یولاس او په یوه خپه مصیبت راځي او یا به ئے نیم کار خرابیږي.

حضرت کرماني فرمائي که اوګوري چه په سترګه کښے ئے رانجهٔ اچولي دي تعبیر ئے دَدین اصلاح تلاش به کوي. که اوګوري چه دَ رانجونه ئے مطلب ښائست او ارائش دے. تعبیر ئے خپل ځان به دَ خلکو به وړاندے امانتګر دیندار ظاهروي، دَدے دَ پاره چه عزت مند شي او که اوګوري چه دهٔ ته چا رانجهٔ ورکړي دي دَدے دَ پاره چه په سترګه کښے ئے واچوي تعبیر ئے دَ دے په اندازه به مال بیامومي. که اوګوري چه دَ سترګے نظر ئے کمزورے شوے دے تعبیر ئے، دے بنکاره او پټ منافق دے. او که اوګوري چه دَ دهٔ وجود کښے سترګے دي او په ټولو نظر کوي تعبیر ئے دَدهٔ دَدین اصلاح دَ او دَدین فرائض، سنت به په ښهٔ شان سره سرته رسوي. که څوک اوګوري چه چا دده سترګه ویستلے ده تعبیر ئے چه په څه ئے سترګه غړولے لکه ښځه خوی، کوم باغ به دَدهٔ دَ نظرونه غائب شي، داسے چه بیا به ئے ونهٔ ویني.

حضرت جابر مغربي فرمائي که اوګوري چه سترګے ئے دَ اوسپنے دي تعبیر ئے پرده به ئے لرے کیږي. که اوګوري چه دواړه سترګے ئے پرسیدلي دي داسے چه سترګے بیا نشي پرانستے کیدے، تعبیر ئے دَ مخالف سره صحبت کښے به کیني. او که دَ سترګو رڼا کمزورے اوګوري تعبیر ئے دهٔ ته به په اطاعت کولو کښے نقصان رسیږي او که خپلے دواړه سترګے وتلے اوګوري تعبیر ئے دَدین شریعت نه به بے برخے وي. او که اوګوري چه دَدهٔ دَ مخ منځ کښے یوه سترګه ده تعبیر ئے په ژبه به دَدین باره کښے ناالائقه خبرے کوي او که اوګوري چه دَدهٔ دواړه سترګے روښانه دي او خلکو ته ښندے ښکاري او یا شب کوري ورته ښکاري تعبیر ئے دَدهٔ دَدین باطن دَ ظاهر نه ښهٔ دے. او که اوګوري چه دَدهٔ تورے سترګے شنے شوي دي تعبیر ئے بدي او دَ حال بدلیدو دے دَ الله تعالی فرمان دے (وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا) ترجمه؛ زهٔ دَ قیامت په ورځ ګناهګاران شین سترګی راپورته کووم. او که اوګوري

چه دواړه سترګې ئې سپینې شوې دي او بیا تورې شوې تعبیر ئې بیمار به شي او یا به دَ چا سره جګړه کوي. او که اوګوري چه سترګه ئې داسې توره شوې ده چه هیڅ تور والې پکښې نشته دې تعبیر ئې متکبره به وي. که اوګوري چه یوې سترګې ته ئې آفت رسیدلې دې، تعبیر ئې، دَ ده خامنو ته به څه آفت رسیږي. که اوګوري چه چا ده ته لاس اوږد کړې دې او یوه سترګه ئې ترې ویستلې ده، تعبیر ئې دَ ده ځوی به دَ لاره نه بوځي. که اوګوري چه چا دَ ده سترګه وتړله یا په لاس کښې واخستله تعبیر ئې دَ ده ځوی یا مال ته به نقصان رسیږي او یا به ګناه کوي. او که اوګوري چه دَ ده دَ سترګې نه وینه روانه ده تعبیر ئې ده ته به دَ ځوی دَ طرف نه غم رسیږي. او یا به ئې دَ مال نقصان وي.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، که څوک اوګوري چه دَ ده سترګه غوړ شوه او غوړ سترګه شو، تعبیر ئې داسې بنځه به کوي چه دَ هغې لور دې دواړو سره به جماع (کوروالې) کوي. او که اوګوري چه سترګه ئې دَ لاس په تلی کښې ده تعبیر ئې مال به بیا مومي. او که اوګوري چه دَ ده سترګه کښې سپینوالې دې، تعبیر ئې ده ته به غم او فکر رسیږي. دَ الله تعالیٰ کلام دې (وَابْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيمٌ)[1] سترګې ئې دواړه دَ غم دَ لاسه سپینې شوې.

**قیصه:-** وائي چه یو سړې دَ حضرت دانیال په خدمت کښې حاضر شو، او وې وئیل چه په خوب کښې مې ولیدل چه زما ښځې سترګه دَ کسې سترګې نه بوسه اخلي، دوی هغه سړي ته او فرمائیل چه دَ الله تعالیٰ نه اُووېریږه او توبه وکړه او دَ خپل ګاونډي ښځې سره خیانت مه کوه په دې خاطر چه دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه امن کښې شې. خوب لیدونکي اووئیل چه توبه مې وکړه او اوس به ښځه وکړم.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، دَ سترګې لیدل په خوب کښې په اوو وجهو وي (۱) رڼړا (۲) هدایت (۳) اسلام (۴) ځوی (۵) مال (۶) علم (۷) په مال او دین کښې زیاتې.

## سُرخاب (یو مارغه دې) (چکاوک)

په فارسئ کښې ورته قبره وئیل کیږي او په خوب کښې تعبیر ئې ځوی یا غلام دې. که اوګوري چه سرخاب مارغه ئې نیولې دې او یا ورته

[1] یوسف ۸۴

چا ورکړے دے، تعبیر ئے دَدۀ غلام او یا څوی به راځی. که نرمارغۀ وی تعبیر ئے دَ غلام څوی به وی، او که ښځه مارغۀ وی تعبیر ئے دَ غلام به جینئ کیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ سُرخاب مارغۀ په خوب کښے دا سے چه خوږ ژبانه، غریب، کم ازاره خوشامند کړدے. که څوک خوب کښے اوګوری چه سُرخاب چا هغه په ورکړے او یائے نیولے دے. تعبیر ئے دا سے سړی په صحبت کښے به ګیر شی.

## سنجاب (دَ ځنا وریو قسم) چه دَ مږ نه لږ لوئے دے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے سنجاب لیدل مسافرمال اره سړے دے او پردے دے، او پوستکے و بستۀ او هغوی غوښتو کے مال دے، او دَدے غوښه دَ مسافر سړی مال دے. که اوګوری چه سنجاب ئے مړکړے او هغه ئے خوړلے دے او غوړن و لے ئے دے او پوستکے ئے شلولے دے تعبیر ئے دَ مسافر سړے مال به تباه کوی او یا به ئے په ظلم لوټ کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه سنجاب تن ئے په مړئے زور ورکړے او وینه ورنه روانه شوے دہ. تعبیر ئے دَ پیغلے جینئ سره به جماع کوی.

## سازوهل (چنګ زدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سازوهل په خوب کښے دروغ خبره دہ. که اوګوری په خوب کښے چه سازوهی تعبیر ئے باطل او دروغ خبره دہ او دۀ ته به دَدے نه غم او فکر او نقصان رسیږی. که اوګوری چه بادشاه ورته ساز ورکړے دے تعبیر ئے دَ بادشاه نه به دۀ ته بخشش او بزرګی رسیږی. او که دَدے اهل وی تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خوشحالی بیامومی او که اوګوری چه ساز ئے مات شوے دے او یا غورځیدلے دے تعبیر ئے دے روغو او باطل نه به توبه وکړی. که اوګوری چه څوک ساز غږوی او دۀ ئے آوری تعبیر ئے دروغ او باطل به اوری او ځنے معبرین وائی چه ساز غږول دَ عمر دَ زیاتوالی تعبیر لری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک اوګوری چه ساز غږوی تعبیر ئے په بادشاهانو کښے دَ چا ښځے سره به ساز غږوی عزت او مال به بیامومی. آخرد!

چه دَ هغهٔ ښځې سره به نکاح کوی اوکه اوګوری چه دَ ساز سره رقص اوکړی،
هم ده تعبیر ئے دَ غم او مصیبت دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که څوک په بیماری کښے اوګوری چه ساز وهی
تعبیر ئے دَ دهٔ دَ مرګ دے۔

## سیاهی (حِبر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سیاهی په خوب کښے دَ زندګی خوښتل او دَ مال موندل دی که
څوک اوګوری چه سیاهی ئے اخستے ده او یا چاورکړے ده، تعبیر ئے زندګی
به په دهٔ اسانه شی او مراد به ئے حاصل کړے شی. که اوګوری چه سیاهی
ورنه توی شوے ده او یا ضائع شوے ده، تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه سیاهی ئے په جامه توی شوه،
دهٔ ته به نقصان رسیږی. اوکه منشی وی نو نقصان دَ دهٔ دَ پاره نهٔ دے
که اوګوری چه په سیاهی سره څهٔ لیکی، که لیکل شوے شے قرآن مجید یا دَ
الله تعالیٰ نوموته وی تعبیر ئے خیر او صلاح ده اوکه دَ دے خلاف ئے
لیدلی وی تعبیر ئے دَ شر او دَ فساد دے۔

## سیاهی (مداد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ سیاهی لیدل په
خوب کښے تعبیر ئے دَ زندګی دَ فراختیا دے، که
اوګوری چه دَ دهٔ نه سیاهی ضائع شوے ده تعبیر ئے دَ دے خلاف دے
حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه سیاهی ئے په جامو پرېوتے ده. تعبیر
ئے دَ دهٔ ته به تاوان ورسیږی. که خوب لیدونکے منشی دی تعبیر ئے، دے به
سرداری مومی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے دَ سیاهی لیدل په
څلورو وجوهو دی (۱) سرداری (۲) راحت او آرام (۳) زندګی (۴) وادهٔ

## سزاورکول (حدزدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سزاورکول
په خوب کښے دَ ښځو دَ کارپوره کیدو تعبیر
دے که اوګوری چه دهٔ سزاورکړیده دَ هغې په اندازه به کار پوره کوی. که
اوګوری چه دهٔ ته چا سزا ورکړے ده. تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائی چه په خوب کښے سزا ورکول په څهٔ ګناه باندے
که دَ خوب لیدونکے نیک عمله وو، دَ دُنیا په کار به مشغول شی اوکه خوب لیدونکے

فاسق وی تعبیر ئے غم او فکر وی۔

## سَنہک (خائسک)

خائسک۔ مطرقه۔ سنهک په خوب کښے لیدل سرداری دَه چه په قوم به ئے کوی. که اوګوری چه ډیرے سټکے ورسره دی او یا ورته چا ورکړی دی، تعبیر ئے دَدهٔ ملګرتیا به دَ قوم دَ بادشاه سره وی او دَ هغهٔ نه به نفع مومی. که اوګوری چه په سټک ئے څوک وهلے تعبیر ئے په دهٔ به بادشاه غصه کیږی. که اوګوری چه دَدهٔ سټک ضائع شوے دے، تعبیر ئے دَ سرداری نه به جدا شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک په آهنګری نهٔ پوهیږی او دے اوګوری چه په سټک سندان وهی، تعبیر ئے دَ دوهٔ بادشاهانو په منځ کښے به چغلی کوی او په جنګ او دښمنی به ئے اچوی.

## سُنتول (ختنه کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښے اوګوری چه دهٔ سُنت کړے دے، تعبیر ئے، څهٔ سنت به په ځلئے کوی چه دے به دَ ګناه نه پاک کړی او که اوګوری چه دَ سنتولو په وخت ورنه وینه روانه شوے ده، تعبیر ئے په سنت به قائم وی او دَ ګناهونو نه به توبه اوباسی. که اوګوری چه دَ سنتولو په وخت ئے سنت ته کتل تعبیر ئے، دهٔ ته به ډیر غم او فکر رسیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَدهٔ سُنت شوے دے تعبیر ئے دَ ګناهونو نه به پاک وی۔ او که اوګوری چه سنت ئے نهٔ دے شوے. تعبیر ئے دَ اسلام او سنتو لاره ئے شاته کړے مګر مال به ئے زیات وی.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی په خوب کښے سنتول په پنځو وجودی (۱) سنت په ځائے را دیل (۲) خوی (۳) نیکی (۴) راحت (۵) دَ بنځے نه جدائی او هم دَ خوی نه

## سپین ځنګلی خر (خرګور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه سپین ځنګلی خر ناست دے او دَدهٔ تابعدار دے، تعبیر ئے دے به ګناهګاره وی. که اوګوری چه دَ ځنګلی خر ښکار ئے کړے دے تعبیر ئے په خیر او نفع یاندے دے. که اوګوری چه دوه ځنګلی خرونه په خپل منځ کښے جنګ کوی تعبیر ئے دوه بدکاره سړی به دهٔ سره جنګ کوی. ـــ او که اوګوری چه ځنګلی خر ئے کور ته راوستے دے. تعبیر ئے، بدکار سړے به کور ته راولی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې ځنګلی خر لیدل جاهل، کم عقل سړے لیدل دی چه دَدهٔ علم او عقل نهٔ وی. دَ الله تعالیٰ کلام دَے (اُولٰٓئِكَ كَالۡاَنۡعَامِ بَلۡ هُمۡ اَضَلُّ) ترجمه: دا خلک دَ چارپایانو په شان دی بلکه دَ دوی نه هم زیات ګمراه دی۔ (الاعراف ۱۷۹)

که اوګوری چه دَ ځنګلی خر غوښه ئے خوړلے، تعبیرئے ډیر مال به بیاموی او که اوګوری چه په ځنګلی خر ناست دے او ورنه غورځیدلے دے تعبیرئے دَ څه کار طلب به کوی او وبه نشی. او که اوګوری چه په ړوند ځنګلی خر ناست دے. تعبیرئے بے اندازے مال به بیاموی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې دَ ځنګلی خر څومن او غوښه مال عزت، مال او مرتبه ده. که اوګوری چه دَ ځنګلی خر مازغه ئے موندلی دی. تعبیرئے، زر، درهم به بیاموی او، یا به دَ بادشاه په صحبت کښې راشی او دَهغه نه به خیر او نفع بیاموی. او که اوګوری چه دَ ځنګلی خر سرئے خوړلے دے تعبیرئے ډیر عبادت به کوی او دَ دین په لاره به ځی. او که اوګوری چه ځنګلی خر ورنه تختی، تعبیرئے دَ مسلمانانو نه به دَجدائی په تلاش کښې وی.

## سرهٔ زر (زر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سرهٔ زر په خوب کښې غم او فکر دے او دَ ښځو دَ پاره نیک او غوره دی. که اوګوری چه سرهٔ زرئے موندلی دی او، یا چا ورته ورکړی دی، تعبیرئے، دَدهٔ به په هغه اندازه مال ضائع شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه زرئے او به کړیدی، تعبیرئے، دَ خلکو دَ ژبو پیغورونو کښې به راشی. که اوګوری چه سرهٔ زر خرڅوی او اخلی تعبیرئے، غم او فکر به ورته ورسیږی. او که اوګوری چه سرهٔ زر ئے بورو کښې ډک کړی او کور ته ئے وړی دی، تعبیرئے دا دے چه مال به بیاموی. او که اوګوری چه سرهٔ زرئے خوړلی تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال په عیال خرچ کړی.

حضرت مغربی فرمائی، دَ سرو زرو شے دَ سړو دَ پاره بد دے او که څوک اوګوری چه سرهٔ او سپین اُوموی، عزت او مرتبه به مومی. او که دَ سرو زرو کان (خزانه) اوګوری تعبیرئے، دَ کوم مال اره سړی سره به نکاح کوی او داسے

وئیل کیږي چه زړګرد روغږن سرېے دے ـ او که اوګوري چه زړګرسره ناست دے او هغهٔ سره لین دین کوي تعبیر ئے دَ دروغږن سړي سره به دَده کار پېښیږي.

## سُونڊ (زنجبیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، سونڈ په خوب کښې لیدل غم او فکر دے او دَ دے خوړل ضرر او نقصان دے او ځینې معبران وائي چه دَ سونڈو تعبیر حکمت او وینادهٔ، او دَ سونڈو خوړل په فائده دے نهٔ ورکولو باندے تعبیر لري۔

## سورے (سایه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه سورے په خوب کښې لیدل سرداري او هیبت دے دَ بادشاه سورے هم په تعبیر کښې بادشاهي ده او دَ دیوال سورے بزرګ سړے دے او دَ بے میوے سورے دَ فساد تعبیر لري۔

حضرت کرمانيؒ فرمائي که اوګوري چه چرته سوري لاندے ناست دے تعبیر ئے مرګ ئے نزدے شوے دے۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (اَلَمْ تَرَ کَیْفَ مَدَّ الظِّلَّ وَلَوْشَآءَ لَجَعَلَهٗ سَاکِنًا) الفرقان ۴۵ ترجمه: آیا نهٔ ګوري دَ خپل رب قدرت طرف ته چه ده سورے څومره لوئے کړے دے او که غوښتلے هغه به ایسا رولو۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي، په خوب کښې دَ سوري لاندے کیناستل په پنځو وجودي (۱) بزرګي (۲) هیبت (۳) پناه (۴) نفع (۵) مرګ

## سترګو بیماري (سبل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که اوګوري په خوب کښې چه دَ دهٔ سترګے دَ سبل بیماري ده داسے چه نظر ئے نهٔ شو کولے تعبیر ئے دَ دے تیاري په اندازه به دَ دین نقصان دے او که اوګوري چه سترګے ئے اسماني رنګے (شنے) دي او سبل پکښې دے تعبیر ئے دَ بدعت په لاره به وي۔ او که اوګوري چه دده سترګو کښې کوږوالے او سبل دے تعبیر ئے څوي به ئے بیمار شي. او که اوګوري چه دَ سترګو نه ئے سبل ویستے دے تعبیر ئے توبه به وکړي۔

او ځینې معبرین وائي چه څوي به ئے دَ بیمارئ نه بنهٔ شي او که مسافر وي نو روغ او جوړ به خپل وطن ته واپس ورسیږي.

## سپینے اوبهٔ (سفید آب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې سپینے اوبهٔ لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے

که اوګوری چه سپینے اوبۀ لری او یا ورته چا ورکړی دی، تعبیر ئے، دَ چا
سره به خبرے کوی او تل به غمژن وی. که اوګوری چه دَ دۀ په مخ
سپینے اوبۀ دی تعبیر ئے دَ هغه په اندازه به ورته دَ دُنیا سامان حاصل شی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، سپین مخے خدمتګار دے، او ځنے معبرین وائی
چه ذکور مالک دے او دَ هغه نیکی او بدی دَ کور خاوند ته راګرزی.

## ستوری (ستارگان)

حضرت دانیالؑ فرمائی چه په خوب کښے
ستوری لیدل تعبیر په بزرګانو او امیرانو
باندے او نمر په بادشاه او سپوږمۍ په وزیر تعبیر لری. که خوب کښے زحل
ستورے اوګوری، تعبیر ئے، دَ زمیندارانو خلکو سره به ئے کار وی، او دوی نه
به ورته مال، نعمت حاصل شی او که مشتری اوګوری تعبیر ئے، دَ دۀ کار به
دَ خیرخوا نیک سردار او پرهیزګار سره پیښیږی. او که دَ مریخ ستورے په
خوب کښے اوګوری تعبیر ئے، دَ دۀ کار به ښائسته، رعب داره ښځو او نوکرانو سره
وی او دَ دوی نه به خیر او ارام مومی. او که دَ عطارد ستورے اوګوری، تعبیر
ئے، دَ دۀ ناسته به دَ هوښیارا او خبر لوڅی سړی سره وی او فائده به ورنه
او مومی او که اوګوری چه ځنو ستورو ورسره خبرے وکړے، تعبیر ئے بزرګی
او مرتبه به بیا مومی.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه څلور ستوری لکه عیوق، عقیق، سهیل
کلیل چه مشرکان ئے عبادت کوی. که یو هم په خوب کښے اوګوری، تعبیر
ئے، دَ مشرکانو سره به ئے ناسته پاسته وی او که اوګوری چه روښانه ستورے
په زمکه پریوتو او ورک شو تعبیر ئے څوک به هغه ملک کښے دَ دُنیا نه سفر
کوی، دَ الله تعالیٰ قول دے (وَعَلَامَاتٍ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ) ترجمه: او
هغه خلک چه په ستورو لاره مومی او که اوګوری چه ستورے په لاس کښے نیولے
دے، تعبیر ئے څوی به ئے کیږی او دَ بادشاه مقرب به شی. او که خپل کور
کښے ستوری اوګوری تعبیر ئے دَ دۀ به ډیر ځامن پیدا کیږی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه په آسمان کښے ستوری کډ وډ شوی دی
تعبیر ئے، دَ بادشاه او دَ رعیت په منځ کښے به فتنه پیدا شی. او که اوګوری چه
دَ سعد ستوری یو ځائے جمع شوی دی، تعبیر ئے، دَ دۀ حالت به ښۀ وی.
او که اوګوری چه ستوری دَ دۀ کورته وتلی دی تعبیر ئے دَ دۀ ځامن به دَ بادشاه

مقرب وي. او که اوګوري چه ستوري د ده تابع شوي دي تعبير ئے بادشاهي به بيا مومي. او که اوګوري چه ستوري خبرے کوي تعبير ئے د وخت بادشاه به منصف وي. او که د دے خلاف اوګوري تعبير ئے د وخت بادشاه به ظالم وي. او که اوګوري چه ستوري د يو بل سره جنګ کوي تعبير ئے په هغه ملک کښے به جنګ او جګړه شروع کيږي. که اوګوري چه ستوري ئے په خپل لستوڼي کښے ايښي دي. تعبير ئے ډير مال به حاصل کړي.

حضرت مغربیؒ فرمائي که اوګوري چه په ستورو کښے يو ستورے د ده په وړاندے تلل وکړل او د ده په خوا کښے پريوتو، تعبير ئے د ده څوي به عزتمند او د مرتبے خاوند وي. او که اوګوري چه ستوري د ده صاحب طالع دي او دے په خپله مرتبه کښے دے، تعبير ئے د ده نسل به زيات شي. که اوګوري چه د ستورو عبادت کوي، تعبير ئے د کوم عالم بزرګ خدمت به کوي.

حضرت اسمٰعيل اشعثؒ فرمائي، په خوب کښے هغه ستورے ليدل چه په هغے څنګل کښے لاره معلوموي تعبير ئے په خير او نفع دے او د هغه ستورو ليدل په خوب کښے چه خلک ئے عبادت کوي تعبير ئے په شر او په نقصان دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په خوب کښے د ستورو ليدل په نهو وجوو وي (۱) فقهاء (۲) علماء (۳) قاضيان (۴) خليفګان (۵) وزيران (۶) وران ځلئے (۷) خزانه (۸) جنګيان خلک (۹) شاګردان

**قیصه**:- وائي چه بغداد کښے يو سړي خوب اوليدو چه رنړا کوونکے ستورے په زمکه پريوتے دے. معبرانو ووئيلے، عالم به د دنيا نه ځي، په هم هغه هفته کښے امام اعظم ابوحنيفهؒ د دنيا نه لاړو.

**ستن (ستون)** | حضرت ابن سيرينؒ فرمائي، ستن په خوب کښے ليدل خوب ليدونکي د پاره دولتمند او نيک بخت سړے دے. که خوب کښے اوګوري چه ستن لري او ښه قوي ده. تعبير ئے د مترقي پسند ه سړي نه به مال حاصل کړي. که اوګوري چه د کور ستن ئے پريوتے او يا ماته شوے تعبير ئے د ده د هلاکت دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائي ستن په خوب کښے ليدل تعبير ئے اسلام دے.

که اوګوري چه د دهٔ د کورستن ماته شوے او، یا پریوتے ده، تعبیر ئے، د کور مالک به مړکیږي. او که اوګوري چه د دهٔ کورستن کمزورے ده، تعبیر ئے د دهٔ د دین د کمزورتیا دے.

حضرت امام جعفرصادق فرمائي په خوب کښے ستن لیدل په پنځو وجو ده (۱) دولتمند (۲) مړګ (۳) رعب والا سړے (۴) په کارونو کښے قوت (۵) ولایت

## سجده

حضرت ابن سیرین فرمائي، که اوګوري چه الله تعالیٰ ته ئے سجده کړے تعبیر ئے په لوے سړي به کامیابیږي. او که اوګوري چه بے د الله تعالیٰ نه ئے بل چاته سجده کړے ده. تعبیر ئے کوم مراد چه ئے په زړه کښے دے، نهٔ به پوره کیږي.

حضرت امام جعفرصادق فرمائي، که خوب کښے اوګوري چه بادشاه ته ئے سجده کړے، تعبیر ئے دهٔ ته به د بادشاه نه نقصان ورسیږي. د الله تعالیٰ قول دے (أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكُمْ وَلَا يَضُرُّكُمْ) الانبیاء: آیا تاسو بغیر د الله تعالیٰ نه د هغه چا عبادت کوئ چه هغه تاسو ته نهٔ نفع د رکولے شي او نه نقصان

## سر

حضرت دانیال فرمائي په خوب کښے د سر لیدل د قوم سردار دے که اوګوري چه پریکړے سر ئے اخستے دے تعبیر ئے خوک سردار به دوست کوي او د هغهٔ نه به خیر او نفع بیا مومي، که اوګوري چه بغیر د زخم د تورے نه ئے د هغهٔ د بدن نه سر جدا کړے دے. که قرضدار وي نو د قرضے نه به خلاص شي او د غم نه به خوشحالي بیامومي او که همدغه خوب کوم غلام اوګوري تعبیر ئے دا دے چه ازاد به شي او که بیمار ئے اوګوري نو صحت به ئے بشپړ شي او که سردار دا خوب اوګوري تعبیر ئے دا دے چه ملک به بیا مومي. او که ازاد سړے ئے اوګوري، تعبیر ئے، بخښه به کوي خو چه مالدار وي.

حضرت ابن سیرین فرمائي، که خوک ډیر پریکړي سرونه اوګوري تعبیر ئے هلته به سرداران راجمع کیږي. که اوګوري چه د مے سرونو نه ئے ویښته یا ځرمن یا ماغزهٔ ئے ویستلي دي تعبیر ئے دا دے چه د سردارانو نه به مال حاصل کړي. که اوګوري چه د خلکو د سرونو پوستکي ئے خوړلي تعبیر ئے خوک سردار مشر به په دهٔ غصه کوي. که اوګوري چه د کوم معلوم انسان سړي سر خوري، تعبیر ئے خپله سرمایه به خوري. او که اوګوري چه د ځنګلي ځناور سر ئے خوړلے دے، تعبیر ئے مال به بیا مومي. که اوګوري

چه دَ نامعلوم سړی سَر ئې خوړلے، تعبیر ئې دَ چا سرمایه به خوری۔ که اوګوری چه دَ چرګ سر ئې خوړلے، تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ بادشاه مال خوری. که اوګوری چه یو سړی ډیر سرونه دَ دهٔ په وړاندے راوړی دی تعبیر ئې دَ هغه ډلے سردار به وی او دَ هغهٔ نه به خیر او نیکی مومی۔ اوکه خوب کښے دَ ښځے سر اوګوری، تعبیر ئې دَ مالداره ښځے نه به خوشحالی بیا مومی اوکه اوګوری چه دَ ګیډ سر ئې خوړلے دے تعبیر ئې، عمر به ئې اوږد شی او دَ حلالو مال به بیا مومی۔ اوکه اوګوری چه دَ غوایه سَر ئې خوړلے دے تعبیر ئې هغه سړے به مال او نعمت مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خوب کښے خپل سَر غټ اوګوری تعبیر ئې مرتبه او درجه به بیا مومی۔ اوکه خوب کښے اوګوری چه دَ دهٔ دوه سرونه دی تعبیر ئې کار به ئې قوی او مضبوط وی۔ اوکه خپل سر بربنډ اوګوری، تعبیر ئې چه کوم شغل او کار لری دَ هغے نه به پریوځی او غمژن به شی۔ اوکه په خپل سر زخم اوګوری چه دَ هغے نه وینه راځی، تعبیر ئې دَ چا سره به جګړه کښے پریوځی. که اوګوری چه دَ سر نه ئې مازغهٔ را وتلی دی او په زمکه پریوتی دی۔ تعبیر ئې خپله سرمایه چه څهٔ ورسره وی دَ لاسه به ئې لاړه شی۔ اوکه اوګوری چه مازغهٔ ئې واپس په خپل ځائے کښے ایښی دی تعبیر ئې خپله سرمایه به بیا په لاس راوړی. که اوګوری چه دَ دهٔ سر غوړ دے، تعبیر ئې دا دے چه دَ خیر کارونه به کوی. که اوګوری چه سر ئې پرېکړے په لاس کښے دے تعبیر ئې، ډیر مال به بیا مومی. اوکه اوګوری چه خپل ریاست کښے به سردار شی او خلک به ئې تابعدار شی۔ اوکه اوګوری چه سر ورسره دَ نیکی خبرے کوی تعبیر ئې دا سړے به نیک عمله وی او خپلو کارونو کښے به دَ انصاف خاوند وی۔ اوکه بدے خبرے ئې ورسره کړے وی تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔ که خپل سَر دوه ټکړے اوګوری داسے چه یوه ټکړه ئې په ښی لاس کښے ده او بله په چپ لاس کښے ده۔ تعبیر ئې، مور او پلار به ئې مړهٔ کیږی۔ اوکه اوګوری چه خپل سر ئې په خپل لاس کښے دے، تعبیر ئې دَ سردارنه به خیر او نفع بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ دهٔ سَر دَ هاتی دَ سر په شان شوے دے، تعبیر ئې، ولایت به بیا مومی۔ اوکه اوګوری چه دَ دهٔ سر دَ اُوښ دَ سر په شان شوید ے، تعبیر ئې، فساد او حرامو ته به مائله شی۔ اوکه اوګوری

چه سرئے دَ اس دَ سرپشان شوے دے، تعبیرئے دا دے چه دَ بادشاه نه به مال
اوموی۔ او که اوگوری چه سرئے دَ خرهٔ دَ سرپشان شوے دے، تعبیرئے دَ
خپل بخت نه به نصیب او حصه بیا موی۔ او که اوگوری چه دَ دهٔ سر دَ غوایهٔ دَ
سر په شان شوے دے، تعبیرئے دَ خلکو په وړاندے به خواروی۔ او که
اوگوری چه دَ کب پشان دَ دهٔ سر شوے دے تعبیرئے دا دے چه په دهٔ به
جهل غالبه کیږی۔ او که اوگوری چه دَ دهٔ سر د زمری د سر په
شان شوے دے تعبیرئے، حکومت به بیا موی او دُښمن به مغلوبه
کړی او که خپل سر دَ سپی دَ سر په شان اوگوری، تعبیرئے دا دے چه ذلت
او خواری به بیا موی او که اوگوری چه دَ دهٔ سر دَ خنزیر دَ سرپشان شوے دے
تعبیرئے میلان به ئے دَ کفر په طرف وی نعوذ بالله منها۔ او که اوگوری چه
دَ دهٔ سر دَ بلور و پشان شوے دے، تعبیرئے دَ دهٔ په هلاکت دے۔ او که اوگوری
چه دَ دهٔ سر دَ سرو زرو یا دَ سپینو زرو پشان شوے دے، تعبیرئے، مال به
بیا موی۔ او که دَ او سپنے یا دَ کانړو پشان اوگوری تعبیرئے دَ کمینه سردار خدمت
به کوی۔ او که اوگوری چه دَ دهٔ سر دَ لرګی دے، تعبیرئے، دَ مرګ نیټه به ئے نزدے
شوے وی۔ او که اوگوری چه دَ دهٔ سر دَ ټهیکری دے، تعبیرئے چرته دَ ټیټوقی سړی
خدمت به کوی۔ که اوگوری چه دَ دهٔ سر دَ مرغانو دَ سرپشان شوے دے تعبیر
ئے دا دے چه په سفر به ځی۔ او که خپل سر پریکړے شوے اوگوری تعبیرئے
دے به په دار زوړند کیږی (پهانسی کیږی)۔ که اوگوری چه دَ دهٔ سرئے دَ وجود
نه جدا کړے او واپس ئے په خپل ځائے ایښے دے او برابر شوے دے تعبیرئے
دَ شهیدانو درجه به آخر بیا موی۔ که اوگوری چه سرو رسره دے او ښځه ئے
حامله وه، تعبیرئے دا دے چه ځوی به ئے کیږی او که ښځے خپل سر خرئیلے
اولید لو، تعبیرئے دا دے چه خاوند به ئے مړ شی۔ که اوگوری چه دَ سر
غوښه ئے سره کړے او خوړلے تعبیرئے دا دے چه مال به بیا موی۔ که اوگوری
چه دَ سر غوښے ئے سرے کړے اخستے دی او یا چا ورته ورکړی دی او دَ هغے نه ئے
خوړلی دی، تعبیرئے دا دے چه دَ بادشاه نه به فائده او موی۔

حضرت امام جعفر صادق رحمة الله علیه فرمائی چه سور کړے سر په تعبیر کښے
رئیس یا سردار دے۔ که اوگوری چه کچه (خام) سرئے خوړلے، تعبیرئے دا دے
چه دَ سردار غیبت به کوی او پوخ سر دَ خام (کچه) نه ښهٔ دے په خوب کښے۔

حضرت حافظ معبر فرمائی په خوب کښې سر لیدل پلار دے اویا بادشاه دے او یا څوی۔ که خپل سر پریکړے اوګوری، تعبیر ئے داد ے چه د مور او پلار نه به جدا شی۔ او که خپل سر په خپل لاس کښې اوګوری تعبیر ئے دا دے چه د دوی سره به ملاویږی۔ او که اوګوری چه سر ئے په خپل شا څټ بیا نګولے دے، تعبیر ئے داد ے چه د چانه به مال اخلی او یا به چاته قرض ورکوی۔ که اوګوری چه ډیر پریکړی سرونه ورسره دی او کل ډیری تعبیر ئے د هغه ملک سردارانو ته به غم او مصیبت رسیږی۔ او که څپله اوږه بانډے د بادشاه سر اوګوری تعبیر ئے لس زره درهمه به بیا مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې د خلکو سرونه لیدل په دولسو وجوه دی (۱) رئیس (۲) سردار (۳) پلار (۴) مور (۵) امام (۶) مؤذن (بانګی) (۷) عالم (۸) لس زره درهم (۹) څوی (۱۰) غلام (۱۱) بنځه (۱۲) مالداری۔ که اوګوری په خوب کښې چه د ده سر لوئے او نورے ځاے ئے اغوستے دی، تعبیر ئے داد ے چه د بادشاهانو سره به ئے ناسته وی۔ او که خیر نے ځاے ئے اغوستے وی تعبیر ئے د سردارانه به غم او فکر پیا مومی۔ او که اوګوری چه سرونه ئے په تنور کښې ایښی دی تعبیر ئے د ده به د سردارانو او نوکرانو سره کار پیښیږی۔

## سرے دلے

سرے دلے په خوب کښې لیدل، تعبیر ئے د مال په زیاتوالی دے۔ که اوګوری چه د ده په بدن سرے دلے راوتلے دی، تعبیر ئے مال به په سختئ او غم سره حاصلوی۔ او که اوګوری چه د ده د وجود نه سرے دانے لرے شوے دی تعبیر ئے د اول نه خلاف کړے۔

## سرکه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سرکه په خوب کښې لیدل، تعبیر ئے حلال مال دے او برکتناک دے او د خوړلو تعبیر ئے هم نیک دے۔ همدا سے حضرت رسول کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی (نِعْمَ الْاِدَامُ الْخَلُّ) ترجمه: ښه ترکاری (اینګولے) سرکه ده۔ او څنے معبرینو فرمائیلی دی، په خوب کښې ترشه سرکه غم او فکر دے۔ او سرکه خرڅوونکے سرے په خوب کښې جګړه مار سرے دے۔

## سوټے (سرګین)

حضرت ابن سیرین فرمائی، په خوب کښې د اُش او د غوایه سوټے لیدل تعبیر ئے مال او نعمت به ورته حاصل شی۔ او که د انسانانو سوټے اوګوری تعبیر ئے د حرام مال دے۔ که

اوګوری چه په غُسل خانه کښې سوځې اچولې دی۔ تعبیر ئې ځه بد به ورته رسیږی او دَ مال نقصان به ئې وی۔ اوکه اوګوری چه دَه په بستره کښې پلیتی کړې دَه، تعبیر ئې دَ خپل مال څه حصه به بال بچ ته ورکوی. که اوګوری چه سوځې ئې په زمکه واچولې او په خاوره کښې ئې ښخې کړې، تعبیر ئې مال به په زمکه کښې پټوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی. که اوګوری چه دَ خلکو سوځې ئې خوړلې تعبیر ئې حرام مال به خوری۔ که اوګوری چه په یو نامعلوم ځائے کښې ئې سوځې غُرز وے دی، تعبیر ئې خپل مال به چرته کوم ځائے کښې خرچ کوی۔ او که اوګوری چه وجود ئې په سوځو ګنده کړے، تعبیر ئې په ګناه کښې به واقع شی که اوګوری په خوب کښې چه دستونه ئې کړیدی، تعبیر ئې خپل مال به اسراف سره خرچ کوی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، دَ سرې ګندګی (ډک او دس ملتے) حرام مال دے او دَ چارپایانو سوځے حلال مال دے او سوځے ورکول هغه مال دے چه په ظلم سره ئې لاس ته راوړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، هره پلیتی چه دَ سړی نه جُدا شی تعبیر ئې دَ مال نقصان دے۔ که اوګوری چه دَ سوځو په منځ کښې روان دے او پښې دوب شوې دے، تعبیر ئې دَ بادشاه نه به غم او فکر ورته رسیږی۔ که اوګوری چه خپه ئې په سوځه ایښې او پریوتو او جامې او وجود ئې ګنده شو، تعبیر ئې دَ حاکم نه به نقصان اوګوری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ دَ سوځو لیدل په خوب کښې په څلورو وجو دی.
(۱) حرام مال (۲) دَ رزق فراخی (۳) په اولاد خرچ کول (۴) دَ غم لرې کیدل.

## سندرے (سرود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې سندرے وئیل تعبیر ئې باطل خبرے او ګناه دَه۔ که اوګوری چه سندرے دَ نورو لهو ولعب شیانو سره لکه تنبل، رباب او شپیلۍ سره وائی تعبیر ئې ډیر غم او مصیبت کښې به شی.که اوګوری چه سندرې اوریدلې دی تعبیر ئې باطل خبرے به اوری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه سندرے ئې وئیلې دی تعبیر ئې، که په بازار کښې وی نو مالداره خلک به رسوا شی او فقیرانو ته به

غم وی ۔ او معبران وائی، سند رے وئیل او آوریدل په خوب کښې په شپږو وجو وی (۱) باطل خبرے (۲) غم او فکر (۳) مصیبت (۴) رسوائی (۵) جگړه (۶) علم او حکمت

## سریش

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سریش په خوب کښې لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے او دَ دے خوړل په خوب کښې تعبیر ئے ضرر او نقصان دے. که اوګوری چه په سریش ئے شے و نخلولو تعبیر ئے دا دے چه څۀ کار به کوی او هغه به په سمه لاره راولی۔

## سریش (سریشم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری یو قسم سریش چه دَ خرمنے ویلی کولو نه اوځی۔ چه سریش ورسره دی، یا چاورکړی دی، تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته راحت ورسیږی. که اوګوری چه سریش ئے خوړلی، تعبیر ئے، دَ عیال په وجه به څۀ کارکوی چه محکم او مضبوط به وی۔

## سفر کول (سفر کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې اوګوری چه سفر ئے کړے دے او هغه ځائے دَ دے نه ښۀ دے تعبیر ئے، دَ دۀ حال به نیک شی، او که ښۀ نۀ وو، تعبیر ئے دَ دے خلاف دے. که اوګوری چه سفر ئے کړے دے او نۀ پوهیدو چه چرته لاړ دے، تعبیر ئے، دَ خپل عیال نه به جُدا شی او یا به بل کورته ځی. او که اوګوری چه دَ یو قوم په رخصت کولو تللے دے یا کومه ډله دَ دۀ رخصت کولو دَ پاره راغلے دہ. تعبیر ئے حال او کار کښې به ئے تغیر راشی او حال به ئے خپل ځائے ته راشی.

حضرت مغربیؒ فرمائی. که اوګوری چه دَ ساز او سامان سره سفر ته لاړ دے تعبیر ئے کار به ئے نیک شی۔ او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے دَ اول خلاف دے.

## سپے (سگ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سپے په خوب کښې لیدل کینه او مهربانه دښمن دے، نو تور سپی په خوب کښې لیدل عرب دښمن دے او سپین سپے په خوب کښې لیدل عجم دښمن دے. که اوګوری په خوب کښې چه سپی خوړلے دے، تعبیر ئے دَ دښمن نه به تکلیف او مومی که اوګوری چه دَ دۀ جامے د سپی په لاړو ګنده شوی دی، تعبیر ئے دَ دښمن په خبره به ستړے شی. که اوګوری چه دَ سپی غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیر ئے، دښمن به دفع کړی. که اوګوری چه سپی ته ئے ډوډۍ ورکړے دہ تعبیر

